# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان


### امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی، ځوانانو ته:

## د علم په مرسته پر ټولې نړۍ حکمراني وکړئ

عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی پرون غرمه د کندهار پوهنتون په جامع جومات کې ددې پوهنتون له استادانو، محصلینو او کارکوونکو سره کتلي او هر اړخیزه وینا یې ورته اورولې ده.

عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی ورعاه ددې کتنې په پیل کې د عصري او دیني علومو پر ارزښت خبرې اترې وکړې. امیرالمؤمنین حفظه الله استادانو او محصلانو ته په خطاب کې وویل: «ګورئ استادانو او محصلانو، تاسو هم دیني او هم دنیوي زده کړې وکړئ، نیت مو یوازې د دین خدمت وګرځوئ؛ ځکه چې په ټولنه کې تاسو ډېر قدر لرئ، ټولنه د مدرسې، مکتب او پوهنتون طالب العلمانو ته په ډېره درنه سترګه ګوري او تاسو ته د خدمت هیله لري؛ په دې هېواد کې په څو واره کفار راغلي او شکست یې خوړلی؛ خو اوس الحمدلله افغانستان د اسلامي او آزاد نظام په رڼا کې پرمختګ کوي.»

عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی محصلینو ته په وینا کې ویلي، چې له تاسو ... ۷مخ


د تأسیس کال ۱۳۷۴ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۶۸۲ ګڼه / پنجشنبه ۱۴ شعبان‌المعظم ۱۴۴۶ هـ.ق / د سلواغې ۲۵مه ۱۴۰۳ هـ.ش / ۱۳ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


# د سلواغې ۲۶مه؛ د شوروي اتحاد د حتمي زوال ورځ



**شریعت:** شېږدېرش کاله وړاندې د سلواغې ۲۶مه هغه ورځ ده چې د شوروي اتحاد زوال ترې پیل شو.

د شوروي د اشغال دمخه افغانستان کې د کمونېزم پر پوچو خیالونو شخوند وهل کېده. آن د ظاهر شاه د پاچایي په لومړیو کې کمونیستي نظریو هېواد کې تېغ وهلی و او د وخت د واکمنانو د نه‌پاملرنې له وجې ددې زقوم زهر په ټول هېواد کې خپاره شول. د ظاهر شاه د پاچایي وروستي کلونه په دموکراسۍ بدرګه شول او د هېواد روانه بېړۍ د کودتاوو او ناخوالو څپو واخیسته. پوهنتونونه، علمي مرکزونه او اخبارونه سره شول او د کمونېزم پوچ توري پکې ښکاره شول.

پر ډارویني او هیګلي فلسفو لړلې دې تصور انسان د بېزو له نسله ګاڼه او اوسنی بشر یې د بېزوګانو پرمختللې بڼه ګڼله. دې خیالي نظریې ته د نړۍ دوه پر درې خلک له تېغه تېر شول. کمونېزم د اقتصاد او سیاست ګډوله ده. سوسیالېزم، کمونېزم او مارکسېزم د پانګیز یا کپټالېستي نظام په وړاندې کارېدونکې اصطلاحات وو چې پکې پوړیز ژوند نفي کېږي، د شخصي شتمنۍ تصور پکې نشته او پر ګډې اشتراکي پانګې ټینګار کوي. د کمونېستانو ددې پوچ تصور موخه ټولنه کې د مساواتو راوستل، د پانګوالې یا بورژوا پوړ نړول او کارګري(پرولتاریا) راپورته کول دي او هر ډول شخصي دارایۍ ضبطول. د کمونېستانو (ارمانښار) له حکومتولۍ او طبقاتي توپیره پرته د یوې ټولنې رامنځته کول و.

افغاني کمونېستان د ظاهر شاه او ولسمشر داوودخان په وختونو کې په پوځي اوسیاسي لوړو بستونو ګومارل شوي وو. کمونېستانو د ګور د چینجیو غوندې یو بل ... ۷مخ

### د ملي دفاع وزارت:

## شاوخوا ۲۰۰ ځوانو منسوبینو توپچي زده کړې بشپړې کړې



د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د جګړه ییزو ګډو زده کړو له قومندانۍ څخه ۲۰۲ تنه ځوان منسوبین له ۴ میاشتنیو مسلکي زده کړو فارغ شوي دي.

دې منسوبینو د ډي‌سي توپ، هاوان او نورو برخو کې تیوري او تطبیقي زده کړې ترلاسه کړې.

ددغو منسوبینو فراغتغونډه کې د ملي دفاع وزارت د استخباراتو رییس مولوي نقیب الله جمال، د توپچي ریاست رییس مولوي محمد یعقوب منصور اکه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د جګړه ییزو ګډو زده کړو قوماندان مولوي نصیب اللهمدني او ګڼ شمېر نورو مسئولینو برخه اخیستې وه.

یادو فارغانو ته د وینا پر مهال مسوولینو ویلي: «توپچي ... ۷مخ

## قرارداد معدن سرب و جست اسپ میدان بامیان امضاء شد



وزارت معادن و پترولیم می‌گوید، قرارداد معدن سرب و جست اسپ میدان ولسوالی یکاولنگ ولایت بامیان به ارزش ۸۳ میلیون و ۸۷۵ هزار افغانی به امضا رسیده است.

بربنیاد خبرنامه، قرارداد یادشده میان وزارت معادن و پترولیم با شرکت تجارتی، استخراج و پروسس بلوچ محمد عزیزی به مدت ۵ سال به امضا رسیده است.

ملا هدایت‌الله بدری، سرپرست وزارت معادن و پترولیم حین امضای قرارداد معدن سرب و جست اسپ میدان گفته ... ص۷

## سرمقاله

## د غزه والو د جلا وطنۍ غوښتنه او د مسلمانانو بې پروایي!

د صهیونیستانو متحدین او سرپرستان پرله پسې غوښتنه او ټینګار کوي چې د غزې ټول درویشت لکه اوسېدونکي دې ژر تر ژره خپل وطن خالي او مصر، اردن یا سعودي عربستان کې دې په دایمي توګه استوګن شي. که څه هم پر مسجد اقصی او شاوخوا سیمو یې د ولکې ټینګولو هڅې ډېره اوږده مخینه لري او وخت پر وخت د صلیبي ځواکونو له لوري سخت یرغلونو پرې شوي او یادې سیمې څوځله د دوی او مسلمانانو ترمنځ لاس په لاس شوې او سختو خونړیو جګړو کې ورانې شوې هم دي. خو له بده مرغه د عثماني خلافت د سقوط (۱۹۲۳) میلادي کال راهیسې د جګړو ترڅنګ د فلسطین پرخاوره د نړۍ له ګوټ ګوټ نه د یهودي وګړو د راغونډولو، د فلسطین پر ځمکه د دوی د مېشتولو او د وطن پراخولو لړۍ هم په چټکۍ سره روانه ده، چې د مګرۍ یې پر غزې د کاملې قبضې اقدامات یوه تازه بېلګه ګڼلی شو. البته دا هم په داسې حال کې چې د شوروي او غرب ترمنځ د سړه جنګ له زمانې رانیولې بیا تر دې وروستیو څو لسیزو پورې لوېدیځوالو په خورا شدت سره د دیموکراسۍ، بشري حقونو، ازادۍ، مساوات او سوله ییز ژوند شعارونه دومره ډېر تبلیغ او تکرار کړل چې تر ډېره حده یې یو غټ شمېر نړیوال هم پرې وغولول، خو د شوروي اتحاد او وارسا تړون له شړېدو وروسته کله چې امریکایانو او ملګرو یې خپل ځانونه د ګردې نړۍ د واکمنو په حیث وګڼل او بیا یې افغانستان، عراق، یمن، لیبیا، سوریه او ډېرو نورو اسلامي هېوادو کې د جګړو اورونه بل او ډول ډول مداخلې پیل کړې، نو یوځل بیا ګردو نړیوالو په تېره مسلمانو ملتونو په رڼو سترګو ولیدل چې صلیبي نړۍ ترکومې اندازې خپلو شعارونو کې رښتینې او په ځانګړې توګه مسلمان بشرته په کوم حیثیت سره قایله ده. له نېکه مرغه اوس یو ځل بیا د دوی وحشت او منافقت مسلمانو او نا مسلمانو ولسونو ته د لمر په شان څرګند شوی او نړۍ هم له یو قطبۍ ... ۷مخ

## د ټولګټو چارو وزارت د وروستیو میاشتو کړنې رسنیزې شوې



**شریعت:** د ټولګټو چارو وزارت د روان لمریز کال په وروستیو میاشتو کې د خپلو کړنو او لاسته راوړنو په اړه راپور ورکړی.

یاد وزارت د سوداګریزو او کرنیزو توکو د خوندي او چټکو انتقالاتو او د هېوادوالو د هوسا تګ راتګ په موخه د سړکونو جوړول او بیارغونه پیل کړې، چې د ځینو چارې بشپړې شوې او د یو شمېر نورو کارونه روان دي. د ټولګټو چارو وزارت مرستیال مولوي عبدالکریم فاتح رسنیو ته ویلي، چې د تېر کال په اوږدو کې یې د سالنګونو د ۸۰ کیلو متره سړک د بنسټیزې بیارغونې کار په درې برخو کې پیل کړی و، چې د روان کال د پلان شویو برخو کار یې په ښه توګه سر ته رسېدلی دی. د لویو ښتلوونکو لارو له ډلې تېر کال د کندهار – کابل سړک د جوړولو چارې پیل شوې وې، چې په ۱۴۰۳ لمریز کال کې یې ۴۳۰ کیلو متره سړک ... ۷مخ

## امضای قرارداد پروژه مرمر دره نور کندهار میان وزارت معادن و پترولیم و شرکت استخراج و پروسس معادن امی اوغلو

**شریعت:** وزارت معادن و پترولیم کشور نشست خبری را به منظور امضای قرار داد پروژه مرمر دره نور ولایت کندهار با شرکت استخراج و پروسس معادن امی اغلو با حضور شماری از مسئولین مربوطه و خبرنگاران در تالار موزیم آن وزارت برگزار کرد.

در ابتدا ملا هدایت الله بدری سرپرست وزارت معادن و پترولیم در پیوند به چگونگی قرار داد وضاحت داده افزود:» خوشحال هستم که با آمدن امارت اسلامی، این وزارت معادن سنگ مرمر و شمار زیادی قرارداد معادن را امضا کرده که اکنون امور آن به شکل بهتر و سرعت روان است و امروز قرارداد پروژه بزرگ سنگ مرمر ... ص۷



## هلمند کې د امنیې قوماندانۍ د نوې ودانۍ چارې پیل شوې



د هلمند د امنیه قوماندانۍ د نوې ودانۍ چارې پرون د څه باندې ۷۵ میلیونه افغانیو په ارزښت پیل شوې.

یادې قوماندانۍ د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، چې د دې ودانۍ د جوړولو په پار د کورنیو چارو وزارت له لوري ۷۵ میلیونه او ۶۰۰ زره افغانیو په ارزښت بودیجه ځانګړې شوې، چې چارې به یې د ۱۵ میاشتو په لړ کې بشپړې شي.

د دې خبرپاڼې له مخې، یاده ودانۍ به په دریو پوړونو کې د اداري شعبو سربېره د غونډو تالار، مېلمستون او اړوند ټول ملحقات په درلودو سره جوړه شي.

یاده دې شي، چې د دې ودانۍ په جوړېدو سره به د هلمند امنیه قوماندانۍ په اداري چارو کې لا ډېرې اسانتیاوې رامنځته شي.

**د شوروي یرغل افغان ولس ته فکري، اقتصادي او ټولنیز زیانونه واړول** ۲مخ

**۲۶ دلو؛ افتخاری که به قیمت خون میلیون‌ها افغان رقم خورد** ص۳

**اقتصاد ته د رُشد ورکولو لپاره د اسلامي امارت غوره اقدامات!** ۴مخ

**افغانستان کې د شوروي ناکامي د روسانو تاریخ ته پاتې پیغور** ۲مخ

# د شوروي يرغل افغان ولس ته فکري، اقتصادي او ټولنيز زيانونه واړول

ډاکټر سيف الله «خالد»




د نـــړۍ پرمخ د ټولو ملتونو تاريخ په خوږو او ترخو ډک دی د تاريخ ځيني پاڼې د فخر ځيني يې د شـــرم وړ وي همدارنګه د نړۍ پرمخ د اسلام له مقدس دين څخه سيوا نور د انسانانو لخوا مختلف رامنځته شوي عقايد، باورونه او تمدونونه جوړ شوي او موجود دي چې مورډ هغو له ډلې يې په افغانستان کې د روسانو له راتګ وروسته کمونيستي يا د کمونيزم تصور او نظريې په هکله څه معلومات وړاندې کوو چې څه ډول يې د افغان مســـلمان ولس فکرونو ته لار و مونده او د اسلام له مبارک دين سره جفا او د بې ديني الحادي او کمونيستي فکرونو ته له وفا سره يې عيار او واړول.

لومړۍ پوښـــتنه داده چې کمونېزم څه ته وايـــي او دا نظريه کله چا د کومو موخو لپاره ولې رامنځته کړه؟

د کمونېزم اصطـــلاح د لاتينـــي د (Communism) همدارنګه د انګليســـي د(Common) يا (universal) په معنی دی اخســـتل شوی چې د عام او شايع معنی لري چې له همدې امله يې په عربي کې (الشيوعية) بولې چې معنی يې مشترک والی او اشتراکيت يا شايع دی.

په اصطلاح کې هغې فکري، سياسي، علمي او اقتصادي خوځښت او نظريې ته ويل کېږي چې په نولســـمه ميـــلادي پېړۍ کې د کارل مارکس د نظريو په اســـاس، د انګلز، هيګل او داروين د نظرياتو په ملاتړ، را منځ ته شوې او په روسيه کې عملا د لينن په واسطه تطبيق شو.

کارل مارکس خپلې نظريې ته د کارګرو د غورځنګ نوم ورکړ او په دې عقيده ؤ چې دا يوه ايډيولوژي نه ده، بلکې دا يو عمومي اوښتون دی چې د کارګرو د طبقو واک ته رسول به يې موخه وي.

کارل مارکس څوک ؤ او ولې يې دا نظريه رامنځ ته کړه؟

کارل مارکس په خته يهودی ؤ چې په ۱۸۱۸ ميلادي کال په جرمني کې تولد شو او په ۱۸۸۳ کال په انګلستان کې مړ شو، نوموړي خپل کمونيستي نظريات په ۱۸۴۷ کال ښکاره او د يوه فکر او ايډيولوژۍ په بڼه يې ټولنې ته وړاندې کړل.

دا چې څه لامل ؤ تر څو کمونيســـتي فلسفه رامنځ ته کړي؟ تر ډېره د نوموړي تر شـــخصي ژوند پورې يې تړاو درلوده، مارکس په خپل ژوند کې د امپرياليزم يا سرمايه دارۍ نظام د واکمنو (سرمايه دارانو) له لاســـه ډېرې ستونزې وليدې، هغه له يوې سرمايه دارې کورنۍ له يوې نجلۍ سره کوژده وکړه، کله چې هغوی پوه شول چې مارکس له غريبې کورنۍ څخه دی، نو دا واده يې فسخ کړ.

همدا شان نوموړي د شمشير زني په يوه سيالۍ کې د يوه سرمايه دار څخه ماته وخوړه او تندی يې ټپي شو، د تندي دې ټپ يې په زړه داغ جوړ کړ او عقده يې ورســـره زياته شوه، له بل لوري، کارل مارکس په يوه بې وزله کورنۍ کې لوی شـــو چې ډېرې ســـتونزې يې له سرمايه دارانـــو وليدې، د لوېديځ ســـرمايه داره نظام چې هر څه به د خان او ســـرمايه دار په لاس کې ؤ له پېړيو پېړيو همدې خانانو په خوارانو او مزدورانو حکومت درلود، خوار او کارګر د پېړيو را پدې خوا محکوم او مظلوم ؤ، د خپـــل واک او حق څخه محروم ؤ، دې حالت هم په مارکس منفي اغېزه وکړه تر څو د کمونېزم مفکوره رامنځته کړي، همدا شان د اروپايي کليســـا کړنې هم د دين او مذهب څخه د مارکس د تېښتې لامل شـــوې، د هغې زمانې کليســـا چې د قيصر او پاچا په خدمت کې وه، خلکو ته يې دا تلقين کاوه چې دا قياصره د خدای له لوري د خلکو نمايندګان دي، دوی چې هر څه کوي او هر څه وايي بايد په پټو سترګو ومنل شي، د کليسا پاپ او د سلطنت تخت د عوامو او غريبو په خلاف لاس ســـره يو کړی ؤ، هر څه يې چې زړه غوښتل هغه يې د قانون په توګه په خلکو منل، ځکه کليسا هم داسې کوم ديني قانون نه درلود چې د الله تعالی له لوري نازل شوی وي، بس د دوی د ګېډې قوانين د الله قوانين بلل کيدل او په خلکو د تورې او متروکې په زور منل کېدل. همدا لاملونه ؤ چې مارکس او ورســـره وروســـته ملګرې يې انګلز، هيګل .. داسې يو نظام ته وهڅول چې د سرمايه دارۍ او دين په ســـر يې پرېکنده ګزار وکړ نو موږ ويلای شـــو چې د مارکس نظريه د امپرياليزم پر وړاندې يو تغيري عکس العمل ؤ.

نو د دوی په فکر کومه ثابته عقيده او تصور نشـــته او هر څه مادي بڼه لري، ټول موجودات او شته شيان ماده ده او ماده تغير کوي، ماده هغه شـــی دی چې په پنځو حواسو محسوس کيدای شي، مارکس وايي نعوذ بالله ( خدای نشته او ژوند يوه ماده ده ) بل ځای وايي : (دين د ملتونو مخدر دی)

د همدې نظريې پر اســـاس لينن پـــه (۱۹۱۳) کال په خپل بيان کې وويل : دا ســـمه نده چې نړۍ د خدای له خوا رامنځ ته شوې، بلکې سمه داده چې د خدای د وجود عقيده يوه خرافي عقيده ده چې خپله انســـان رامنځ ته کړې، له همدې امله هر څوک چې د خدای د فکر څخه دفاع کوي هغه يو جاهل انسان دی .

همدا شـــان لينن په (۱۹۲۰) کال د ځوانانو غونډې ته وويل : لازمه ده چې زموږ ځوانان په کمونســـتي اخلاقو سنبال شي، او دا هم بايد واوري چې دا اخلاق له کومو الهي سرچينو ندي ترلاسه شوي ځکه موږ په خدای باور نه لرو. «نعوذبالله من ذالک»

د پرودا ورځپاڼې په (۱۹۵۴) کال وليکل : د خدای د وجود تصور يو پخوانی جاهلي تصور دی. دا او داســـې نور ډېر دلايل شته چې دا په ګوته کوي چې د کمونېزم مفکوره يوه الحادي او په خدای تعالی د نه باور مفکوره ده .

د کمونېزم تصور لاندې موخې درلودې

۱- د خصوصي ملکيتونو له منځه وړل

۲-د مزد او اجورې ټاکلې اندازه له منځه وړل

۳-د ماترياليد او ديالکتيکي نظرياتو پر اساس يواځې ماده منل او له ثابتو عقايدو انکار

۴- د کارګرانو دکتاتوري او يوګونديز نظام

۵- د داروينې نظرياتو پر اســـاس انساني نسل د بيزو له نسل څخه منل.

اوس به په دې بحث وکړو چې افغانستان کې کمونستي جريانونه او ډلې له کومه وخته راپيل شوي دي اوسنی حالت يې څه ډول دی او دا غيور ولس يې په کومو ډلو ووېشـــه او مسلمانانو ته يې کوم زيانونه واړول؟

په افغانستان کې هم د نورو هېوادونو غونډې د ۱۳۲۰-۱۳۳۰ کلونو ترمنځ د کمونيســـت ګوند نظريې خپرې شوې، دا نظريات په پټه او يواځې د نظريو په سطحه په پوهنتوني او اکاډيميکو مراکزو کې مطرح ؤ، ځيني کسانو چې له کمونيســـتي هېوادونو سره يې تړاو درلود، يا يې هلته زده کـــړې او لوړ تحصيلات کړي ؤ عملاً يې دی نظريې ته کار کاوه، کتابونه او ليکنې به يې سره تبادله کولې او دعوت يې کاوه .

بلاخره شـــوروي پلوه کمونيستي ډلې په ۱۳۴۳ کال د جدي په ۱۱مه (حزب ديموکراتيک خلق افغانســـتان) د نور محمد ترکي په کور کې د هغه په مشـــرۍ تأسيس کړ . په دې ډله کې نورمحمد ترکی، ببرک کارمل، حفيظ الله امين، طاهر بدخشـــي، ميرغلام محمد غبار او داسې نور شامل ؤ چې غبار له همدې وخت څخه ورڅخه جلا شو . د عبدالکريم ميثاق په خبره، حزب د تشـــکيل پر مهال په ښـــکاره د کمونيســـتي افکارو له بيانولو ډډه کوله، خو د غړو تر منځ دا نظريه واکمنه او عملاً د دوی تر منځ همغه کمونيستي اصطلاحات او افکار تبادله کېدله .

د خلق او پرچم د ډلو رامنځ ته کېدل

د حزب له تشـــکيل څه وخت لا نه ؤ تېر شـــوی چې د غړو ترمنځ د واک، ژبې او تصوراتو پر اســـاس اختلافات راپورته شول او حزب د خلق او پرچم په برخو ووېشل شو

۱- خلق : لومړی ډله د خلق په نوم د نورمحمد ترکي تر مشرۍ لاندې چې د حفيظ الله امين په ګډون زياتره کليوال او پښتانه ورسره ؤ رامنځ ته شوه چې د انقلاب تر آخره په همدې نوم مشهور وه.

۲- پرچم : دوهمه ډله د پرچم تر نوم لاندې د ببرک کارمل په مشرۍ چې زياتره ښاري او فارسي ژبي په کې راټول ؤ په کار پيل وکړ.

دا دوه تنه( امين اوکارمل) فقط دوه اشخاص نه وو بلکې دا هغه شوم او د ضلالت افکار وو چې د افغانستان پاک زړی ولس يې د دنيوي او اخروي زيان کندې ته ور ټېل واهه.

کميونيســـتي فکري يرغل ټولـــې بد بختۍ په افغان ولس راوســـتې له اســـلامه لرې کول، نسلونه له ښـــوونيز چاپېرياله بې برخې کول، بېکورۍ، مهاجرتونه او د الحادي افکارو فاش او نشر.

کمونيســـتانو د انســـانانو تر منـــځ درې شـــيان ( زر (دارايي)، زور (حکومت)، زن (ښـــځه) شـــريک بلل، او دا نظريـــه يې لرله چې هېڅوک بايد په يوازې او شخصي توګه د دې شيانو مالک نه وي، که څه هم چې وروسته بيا کمونيستانو په عملي لحاظ پدې نظرياتو کې تر ډېره حده ترميمکاري وکړه.

کمونيستانو که څه هم د حرام په نامه په خپل قاموس کې څه نه لرل او ټول څه يې حلال ګڼل. دا ځکه چې دوی د (حرام) تصور له ژونده د پوره خوند اخيستلو پر وړاندې خنډ ګاڼه. له همدې امله خو کمونېزم ته اباحيت هم ويل کېږي يعنې هر څه ورکې مباح دي.

کمونيستانو په افغانستان کې د مسلمان ولس د عقيدې، شريعت او معنوي ارزښتونو سپکاوی وکړ او د خلکو د ديني هويت د مسخ کولو اقدامات يې ترسره کړل. د هېواد ځوانان به يې په زوره د مجاهدينو پر خلاف جګړې ته سوق کول چې له همدې امله به ځوانان د حکومت د تسلط له ســـيمو وتل، چې په نتيجه کې يې کلي له ځوانانو خالي شول او د هجرت لار يې ونيوله.

دا چې د هغه وخت کمونيســـتانو د دې غيـــور ولس په هڅه او دالله جـــل جلاله په نصرت ماتې وخوړه او د قدرت واکې ېېرته د مخلصو مسلمانانو لاس ته ورغلې نو د دې لنډو خلصو جرياناتو څخه ولس عوامو او خواصو ته خورا مثبت تنبيهات پندونه او عبرتو الهامېږي چې په راتلونکي کې د اســـلام د ښمنان څومره په مکر او فريب دې پاک زړي ولس ته بوتلان اتلان او رښـــتيني اتلان مجرمان او پردي وبولي نو دوی دې پرې نه خطا وزي د خپل اسلامي فکر د اتلانو تر قيادت لاندې دی په پوره اخلاص او داډ مختلفو پر مختګونو ته دوام ورکړ.

# افغانستان کې د شوروي ناکامي د روسانو تاريخ ته پاتې پيغور

حيات الله حليم

افغانســـتان ته د ۱۳۵۸ کال د جدي په شـــپږمه د شورويانو راتګ کومه تصادفي پېښـــه نه وه، ځکه روســـانو د دې حملې لپاره پوره شـــپيته کاله د سياسي او ســـيمه ييزو مطالعاتو په ترڅ کې کارکړی و او اوږده پلانونـــه يې طرح کړي و، خـــو دا چې ولې يې له پلان د مخه په افغانســـتان حمله وکړه دا د هغوی د نظامي سياســـت هغه خامي وه چې له حملې وروسته يې د نړيوالو طاقتونو او همدارنګه د سياستوالو او تحليلګرانو په اذهانو کې داسې مفکورې را وپارولې چې شورويان يې په افغانستان کې له مطلقې ناکامۍ سره مخ کړل، که له يوه پلوه د شورويانو نابېره راتګ افغانستان ته د نړيوالو اصولو خـــلاف و، له بل پلوه شـــورويان د نړيوال عامه ذهنيت له ســـختو نيوکو او کرکې ســـره هم مخ شول، خو اصله خبره داوه چې روسانو د افغانســـتان د اشـــغال پلان درلود، اول يا آخر افغانستان ته راتلل چې په راتلو کې ترې بيره وشـــوه او دا بيـــره د افغانانو او نړيواله پر ګټه تمام شـــوه ځکه له وخت د مخه راتګ يې داسې ظالمانه و چې ټوله نړۍ يې وبېروله، آن تردې چې يو شـــمېر کمونيســـتو هېوادونو هم د ملګروملتونو په هغه غونډه کې چې په افغانســـتان د روسانو د تېري په اړه جوړه شـــوې وه له افغانستانه د روسانو په وتلو مطلقه مثبته رايه ورکړه، خو دوی د انترناسيوناليستي مرستو تر عنوان لاندې خپـــل تېري ته قانوني بڼه ورکولـــه او د هېڅچا خبره يې نه منله، څو د ۱۹۸۹کال د فبرورۍ په ۱۵مه له زرګونو انساني تلفاتو او د ميلياردو ډالرو خسارې په تحمل سره له افغانستانه لاس ترپښنو اوږده ووتل .

داچې په افغانســـتان کې د روسانو د ناکامۍ عوامل څه و؟ دا ټولې هغه پوښتنې وې چې د نړۍ د سياستوالو په اذهانو کې تراوسه نه دي متحد المال شـــوې، خو هغه څه چې د روسانو د تېري او ناکامۍ پـــه اړه واقعيت ته نيږدې انګېرل کېږي، هغه دا دي چې روســـانو د افغانســـتان د اشغال لپاره د خپلې اوږد مهاله ستراتيژيکې پاليسي د تطبيق پرځای « د نظامي تېري » ته اولیت ورکړ په داســـې حال کې چې په افغانســـتان کې د دوی د تېـــري لپاره د دوی په اصطلاح هم عيني او ذهني شـــرايط نه وو آماده شوي او د دوی له وخت د مخه بيره د دوی د ناکامۍ سبب شوه، له بل پلوه د روسانو ترسترګو لاندې بې تجربې افغاني کمونيستانو بې سببه وژنې، بې جرمه بندي کول، هم د دې سبب شول چې د دوی په عملکردونو شورويان د نړيوال عامه ذهنيت له کرکې ســـره مخ شـــي، د آمريکا په شـــمول نړيوالو او د ناټـــو غړو هېوادونو دا وخت پـــه ملګرو ملتونو کې پرېکړه وکړه چې شـــوروي دې له قيد شرط پرته له افغانســـتانه خپلې قواوې له افغانســـتانه وباســـي خو دوی بيا هم د هېڅچا خبره نه منله، ځکه د افغانانـــو له غيرت او مېړانې څخه ناخبره وو، روســـان په لومړي او دويم نړيوال جنګ کې هېڅـــا دومره نه ول ډېولي لکه افغانانو چې وډبول، دوی هم صرفه ونه کړه کلي،ښـــارونه، ښوونځي، روغتونه او نورعام المنفعه تاسيســـات يې وران او ويجاړ او پاخه سړکونه يې شـــيدياري کړل او څومره يې چې وس رســـېده له مقاومو افغانانو ســـره يې دښمني کوله، د وخت په تېرېدو ســـره په خپله د شوروي تحليل ګران او د نظر خاوندان هم په افغانستان کې پر خپله نظامي مداخله پښېـــمانه او اختلاف نظريې ترمنځ را پيدا شو، ځکه د دوی ځاني تلفات او مالي خســـارې په افغانستان کې دومره زياتې شوې چې د هرې ورځې په تېرېدو ســـره رســـوا کېدل، که څه هم د نظر دغـــه مخالفين او موافقين د ( KGB ) له وېرې د خپل شـــخصي امنيت پربنا چوپه خوله پاتې وو، خوپټ پردې باور وو، چې ښايي د شـــوروي په رهبرۍ کې د بدلون راتلو په ترڅ کې دا ســـتونزه حل شـــي چې همداسې هم وشـــول کله چې د شـــوروي په حزبي او دولتي رهبرۍ کې د ځيرو بدلونونه را منځ ته شـــول او نظريات يې متفاوت شـــول، روســـي واکمنو وخت غنيمت وګڼه او دا يې پلمه وګڼله چې نور بايد له افغانستانه پښې سپکې کړي ځکه د شوروي د نوې رهبرۍ يو شـــمېرغړو، نه غوښـــتل چې نور په افغانستان کې نظامي ماموريت په ترڅ کې د ســـرونو قرباني ولري د شـــوروي د رهبرۍ دنظرياتو اختلاف دا خبـــره ځکه واقعيت ته ورنيږدې کوي چې ګرباچوف هم نورنه غوښـــتل په افغانستان د انترناسيوناليستي ماموريت ترعنوان نورپه نړيوال سياست کې د خپل ځان او شوروي د اهانت شـــاهد واوسي هغه کسان چې د شوروي په رهبرۍ کې له ګرباچوف ســـره هم نظري وو د خپل تحليل پربناء يې له افغانستانه پر وتلو کلک اســـرار درلـــود ځکه دوی پوهېدلـــي و چې د افغان موجوده حکومت پر وړاندې اوس وســـله وال مخالفين د يوه داسې قوي ســـرپه توګه را څرګند شوي چې د ســـيمې له هېوادو سره په همغږۍ ســـربېره د ويتنام د جنګ غچ اخيســـتونکې آمريکا يې په خوا پـــورې کلکه ولاړه ده، په ۱۹۸۶ ميـــلادي کال د لومړي ځل لپاره ګرباچوف په دې وتوانېد چې د شـــوروي د حزبي او حکومتي رهبرۍ ترمنځ د خپل منځي اختلافونو ســـره ســـره له افغانستانه د پوځونو په ايستلو يو متحد او متفق نظر را منځ ته کړي له افغانستانه د قواوو پر وتلو د ګورباچوف لوراستدلال داو، چې په افغانستان کې د شـــوروي د مځکنيو ځاني او مالي زيانونو با وجود که دا پروســـه نور دوام هم ومومي ښـــايي موږ له شـــلونه تر ډېرشـــو، کلونو لپاره نور هم د افغانســـتان په جنګ کې ښکېل پاتې شـــو، نو يې په ډېره هوښيارۍ خپله پاليســـي بدله او د بشپړې نرمۍ لاره يې خپله کړه، ځکه روسان نور په افغانســـتان کې له جنګه سخت ستړي شوي و او له افغانســـتانه د ګرباچوف د پرېکړې تصميم ځکه ســـم او په ځای وباله چې آمريکا د افغان مجاهدينو ترمنځ دا وخت داســـې رول ولوباوه چې په هغه کې تنظيمي رهبري نوره بې اغيزې غونډې کړه، د مجاهدينو د اکمال او دوی ته د وســـلو د توزيع پروسه چې له دې د مخه د تنظيمي رهبرانو په لاس کې وه په مستقيمه توګه يې د ACLU په نامه د ISI او CIA په مشـــترک مديريت يوې لويې څارګرې شبکې ته چې آمريکا يې راس کې وه، وسپارله، چې دلته د مجاهدينو ترمنځ يوغير ارادي يووالی او اتحاد هم را منځ ته شو، پورته ټول هغه حقيقتونه وو چې د شوروي رهبرۍ په افغانستان کې له نيږدې څارل نو ځکه شـــوروي مجبور شـــو چې د ملګرو ملتونو پخوانـــۍ پرېکړې چې هغه وخت يې نه منلې اوس د نړيوالو په ډېر تت منځګړتوب په ډېرې آســـانۍ د ژنيـــو د پرېکړو ترعنوان لاندې ومني او له افغانستانه خپل د وتلو پلان عملي کړي، شوروي اتحاد په ۱۹۷۹ کال چې د ۱۳۵۸ کال د جدي د ۶ مې ســـره يې ســـمون درلود پر افغانســـتان د ټولو نړيوالو موازينو خلاف د ســـل زره پليو عسکرو او بې شميره زرهي وسايطو الوتکو او مجهز جنګي ماشين سره د افغانســـتان نوې جغرافيا ته داخل شو او د ۹ کالو په موده يې خپلې او د بيکنـــا افغانانو وينې تويې کړې خو څه په لاس ورنغلل او بالاخره د ۱۴۰۰۰انساني تلفاتو ۲۷۰۰۰ټپيانو ۲۰۰ ترې تامو او لسګونو الوتکو په غورځېدو سره له افغانستانه د ګروموف په مشرۍ د دوستۍ (!) د پله لارې ازبيکستان ته پورې وتل او خپل شرمېدلی تاريخ يې په افغانستان کې پر ځای پرېښود.

# ۲۶ دلو؛ افتخاری که به قیمت خون میلیون‌ها افغان رقم خورد

**نجیب‌الله جهادوال**

۲٦ دلو برابر با ۳۶مین سالروز شکست مفتضحانه قشون شوروی سابق در افغانستان است، که در نتیجه مقاومت بی‌دریغ افغان‌ها مجبور به فرار شدند. زیرا با گذشت هر روز از حضور نظامیان اشغالگر شوروی وضعیت به نفع مجاهدین و ضرر اشغالگران تغییر می‌کرد، و مجاهدین با استفاده از تجارب جدید هم در میدان جنگ و هم در میدان سیاست، اشغالگران شوروی و اداره تحت‌الحمایه آن‌ها را با چالش‌های زیاد روبه رو کرده بود.

این امر بالآخره زمامدارن اتحاد شوروی را وادار کرد که روی خروج قوای خود از افغانستان فکر کنند. میخایل گورباچف که در حوت ۱۳۶۳ هـ.ش زمام امور را به‌دست گرفت، در جستجوی راه‌های خروج آبرومندانه بود، زیرا می‌دانست که کمونیزم در حال فروپاشی است و باید با طرح یک سلسله ریفورم های داخلی و خارجی از این روند جلوگیری کند. این کار بدون خروج قوای شوروی از افغانستان میسر نبود، بناءً وی اشغال افغانستان را که به هدایت برژنف صورت گرفته بود، یک اشتباه بزرگ خواند و با ارائه مسئله ی خروج قطعات نظامی خود در بیست و هفتمین کنگرۀ حزب در فبروری ۱۹۸۶ به سران حزب کمونیست پیشنهاد کرد که راهی برای خروج از افغانستان پیدا کنند. وی طی سخنرانی علنی در گنگره ی حزب کمونیست اعلام کرد: « تقریباً شش سال است که ما در افغانستان مشغول جنگ هستیم. اگر خط مشی خود را تغییر ندهیم باید بیست یا سی سال دیگر به همین شکل، بی‌سرنوشت در افغانستان می‌مانیم.»

در کتاب «پشت پرده افغانستان » نوشته دیه‌گو کوردووز و سلیک هاریسون آمده است که مقامات مسکو با این سوال مواجه بودند که پس از خروج نیروهای شوروی از افغانستان، در پایتخت کابل چه اتفاق می‌افتد؟ بحث بر سر این بود که آنها حکومت کابل را حفظ و تقویت کنند یا اینکه نوعی ائتلافی را بپذیرد که نجیب‌الله و حزب دموکراتیک خلق افغانستان را در حد یک اقلیت تنزل قدرت دهند.

کوردووز به نقل از معاون سابق وزیر خارجه شوروی نوشته است که مقام‌های شوروی دراین باره اختلاف نظر داشتند. دسته‌ای معتقد بودند که باید رژیم کابل را در قدرت نگهداشت. گروه دیگر باورمند بود که کابل بعد از خروج ارتش سرخ مدت زیادی در برابر حمله مجاهدین دوام نخواهد آورد و گروه سوم نیز فکر می‌کرد که بنیادهای رژیم دموکراتیک خلق افغانستان با دادن نقش به افراد خارج از حزب باید حفظ شود.

با تمام اختلاف نظرها در اواخر سال ۱۹۸۶ میخائیل گورباچف، رهبر شوروی این اجماع را به وجود آورد که مسکو باید از جنگ افغانستان رهایی یابد. اما پس از خروج نیروهایش نیز باید حکومت کابل در اقتدار باشد، به‌همین‌منظور کمک‌های تسلیحاتی و مالی خود به افغانستان را ادامه داد و سازمان اطلاعات روسیه (ک.ج.ب) پول و تجهیزات لازم را دراختیار حکومت کابل گذاشت تا گارد ریاست جمهوری جدیدی را با حقوق و مزایایی بالا همانند یک ارتش خصوصی به‌وجود آورد و از این طریق با طرح موسوم به «دوکتورین گورباچف» که شامل موارد ذیل بود خواست به نفوذ غیرمستقیم خود در کابل ادامه دهد:

- وارد کردن تغییر ظاهری در ادارۀ رژیم با نصب داکتر نجیب بجای ببرک کارمل در رأس دولت حزبی کابل؛
- اتخاذ روش مسالمت آمیز با امریکا که منجر به امضای معاهده ژنیوا در اپریل ۱۹۸۸ و خروج رسمی عساکر شوروی در فبروری ۱۹۸۹ از افغانستان گردید؛
- ارسال مقادیر بزرگ اسلحه و مهمات نظامی مدرن به حکومت کابل؛
- اعزام یک تعداد عساکر از جمهوریت های آسیای مرکزی به لباس ملکی و به نام تبعۀ افغان و توظیف بیش از ده هزار نظامی بنام مشاور ملکی؛
- فراهم آوری امدادهای مالی و تخنیکی برای استقرار و ثبات رژیم کابل؛ و
- اکمال کمربند دفاعی کابل و ماین گذاری در تمام ساحات ستراتیژیک کشور.

به همین‌منظور در اولین اقدام ببرک کارمل نخست از مقام رهبری و سپس از ریاست شورای انقلابی معزول و به بهانه تداوی به ماسکو تبعید گردید.

گورباچف برای اینکه به رئیس جمهوری افغانستان خروج شوروی را واضح بسازد، نجیب‌الله را به مسکو احضار کرد و به او گفت که بهتر است حکومت کابل ظرف ۱۲ماه آینده خود را برای خروج ارتش شوروی آماده کند، زیرل شوروی از افغانستان خارج می‌شود.

یوری ورنتسف، معاون اول وزارت خارجه شوروی وقت که در نشست گورباچف و نجیب حاضر بود، گفته است: « نجیب با گفته‌های گورباچف مخالفتی نکرد، اما وی برای تثبیت پایه‌های رژیمش آنچنان که گورباچف می‌خواست کار زیادی نتوانست و بیشتر درصدد به تأخیر انداختن روند خروج نیروهای شوروی از افغانستان بود.»

همین بود که روند انتقال مسئولیت نظامی به نیروهای حکومت کمونیستی کابل آغاز شد تا با پشتبانی هوایی و توپخانه نیروهای شوروی در مقابل مجاهدین بجگند. این زمانی بود که طبق آمار رسمی توان نیروهای مسلح حکومت کابل، به ۳۰۲٬۰۰۰ تن می‌رسید که ۱۳۲٬۰۰۰ تن آن مربوط وزارت دفاع ، ۷۰٬۰۰۰ تن آن مربوط به وزارت داخله و ۸۰٬۰۰۰ تن آن هم مربوط وزارت امنیت دولتی یا خاد سابق بود.

علاوه بر آن در عرصه سیاسی نیز تلاش‌ها برای خروج عساکر شوروی از افغانستان آغاز شد، در سال ۱۹۸۲ (۱۳۶۰_۱۳۶۱) مذاکرات چهارجانبه با میانجیگری دیه‌گو کوردوویز نماینده ویژه سازمان ملل در امور افغانستان آغاز شد که بالآخره پس از ۴۱ دور مذاکره منجر به امضای توافق‌نامه مورخ ۱۵ اپریل سال ۱۹۸۸ (۲۶ حمل سال۱۳۶۷) صلح ژنیوا میان دولت‌های افغانستان، پاکستان، ایالات متحده و اتحاد شوروی در ژنیو پایتخت سویس گردید.

این توافقنامه را که دولت‌های وقت افغانستان و پاکستان به عنوان طرف‌های اصلی و امریکا و شوروی به عنوان «ضامن» و «ناظر» امضا کردند، از جمله موارد آن عدم مداخله امریکا و شوروی در امور داخلی افغانستان و پاکستان و تعیین برنامه زمانی خروج عساکر شوروی بود.

همین بود که پس از امضای این توافق‌نامه اتحاد شوروی اواسط سال ۱۳۶۶ (۱۹۸۷) اعلام کرد که قصد آغاز خروج از افغانستان را دارد و متعاقباً در ۲۹ سرطان ۱۳۶۶ هـ‌ش روند خروج نیروهایش را آغاز کرد.

آخرین نظامی قشون سرخ که از پل حیرتان داخل خاک اتحاد شوروی شد، جنرال بوریس گروموف فرمانده فرقه (لشکر) چهلم ارتش شوروی بود که روز چهارشنبه ۱۵ فبروری سال ۱۹۸۹، ساعت ۱۱:۵۵ دقیقه به وقت محلی و ۹ ماه بعد از اجرای معاهده ژنیوا با عبور از پل دوستی بر فراز رودخانه آمو میان افغانستان و ازبیکستان پایان روند خروج نیروهای کشورش را از افغانستان رسماً اعلام کرد . این خروج یک شکست نظامی تاریخی برای بلاک شرق به رهبری اتحاد شوروی سابق شمرده می‌شود.

جنرال گروموف پس از پیاده شدن از جیپ حاملش، با نگاه حسرت آمیز به خاک افغانستان، چند بار زمزمه نمود: « ما دیگر آن‌جا نخواهیم رفت، لعنت بر بزرگان ما که ما را به کشوری‌که در هر دره و سنگ و کمرش فرمان مرگ نوشته است، امرِ حمله و اشغال دادند.» موصوف حتی بدون نگاهِ مختصر به عقب، مستقیماً به پیش رفت تا پسر جوان خود «ماکسیم» را که به خاطر پذیرایی وی به آن‌جا آورده شده بود را در آغوش بگیرد.

# افغانستان او د دوه اړخیز درناوي اړیکې

**سلطان جان خاکسار**

د افغانستان اسلامي امارت د بیاځلي واکمنۍ په لومړیو ورځو کې امارتي مشرانو وویل چې کابل له ټولو هېوادونو سره په دوه اړخیز او مقابل درناوي ولاړې اړیکې غواړي.

اسلامي امارت په ځلونو ګاونډیو هېوادونو، د سیمې هېوادونو، اروپايي ټولنې او ټولې نړۍ ته ویلي چې افغانستان د هېڅ هېواد پر وړاندې خطر نه دی، نه هم د افغانستان خاوره او قلمرو د کوم چا پر وړاندې کارول کېږي او نه به هم ترهګرو او نورو خپلسرو ډلو ته اجازه ورکړي چې د افغانستان خاوره د ګاونډیو، سیمې او نړۍ هېوادونو پر وړاندې وکاروي.

ددغه ډاډ باوجود او د دوه اړخیزو درناوي په پام کې نیولو سره افغانستان د ټولې نړۍ ټولو هېوادونو ته د دوستۍ غېږ پرانیسته او حتی د امریکا په ګډون یې اروپايي او کفري هېوادونو ته وړاندیز وکړ چې له کورنۍ لاسوهنې پرته افغانستان سره اړیکې قایمولی شي. د اسلامي امارت د لوړپوړو مسئولینو له قوله چې تر اوسه اسلامي امارت د هر هېواد ور ټکولی، د سوداګریزو او ډیپلوماتیکو چینلولو د پرانیستې په معنی دی. افغانستان په دې برخه کې ګڼې لاسته راوړنې لري. د سیمې په هېوادونو کې له ازبیکستان، ترکمنستان، چین او نورو سره دوه اړخیزې همکارۍ دې کچې ته ورسېدې چې چین له افغانستان سره له ځمکې لارې وصل شو، ترکمنستان دې ته غاړه کېښوده چې د ټاپي د ګازو نل لیکه د افغانستان له خاورې تېره شي او دا د ټاپي په اړه له پیل شویو بحثونو او منډو ترړو وروسته چې شاوخوا ۳۰ کلونه پرې اوړي، لومړی ځل و چې د افغانستان په خاوره کې د ټاپي د نللیکې کار پیل شو. اوسمهال د افغانستان ډیپلوماټیکې اړیکې له لسګونو هېوادونو سره فعالې دي، د افغانستان سفارتونه، کونسلګرۍ او نماینده ګۍ شته او همدارنګه د لسګونو اسیایي، اروپايي او افریقایي هېوادونو سفارتي اړیکې له افغانستان سره په عادي ډول پر مخ ځي.

یوازې څو ورځې دمخه د بهرنیو چارو وزارت ځینو مسئولینو منلې چې ترکیه هم د افغانستان سفارت د اسلامي امارت ډیپلوماټانو ته سفارت شوی او هلته د افغانانو په پار په عادي ډول کونسلري خدمتونه روان دي.

تازه ویل شوي چې هندوستان کې هم د افغانستان سفارت د اسلامي امارت غړو ته سپارل شوی. په دې وروستیو کې د اسلامي امارت او نوي ډهلي اړیکې د پام وړ رغېدلي او لا هم وده کوي. موږ په دې لیکنه کې هم یوازې د هند او افغانستان اړیکو ته کتنه کوو.

تاریخي متون دا په ګوته کوي چې افغانستان او هند له پېړیو پېړیو او زرګونو کلونو راپه دې خوا تاریخي، کلتوري او تجارتي اړیکې لري. نه یوازې دا چې هند له افغانستان سره نږدې ګاونډی او د راکړې ورکړې هېواد و، پر همدې خاورې په ځلونو افغان واکمنانو پاچایي کړې ده. کوشانیان، غزنویان، غوریان او په لسیزو لسیزو د لودیانو کورنۍ پرې واکمنې وې. افغانانو په هند کې لویې واکمنۍ لرلې او د برم او بزم زمانه یې تېره کړې ده.

اصلاً د ډیورنډ دا د جبر کرښه هم د برېتانوي هند او افغانستان ترمنځ کش شوې ده، پاکستان ته لازمه هم نه ده چې پر دې خاورې حتی د دعوې خوله پرانېزي.

په معاصر تاریخ کې، هند د افغانستان د خپلواکۍ ملاتړ کړی او اوس مهال د دغه هېواد له مهمو اقتصادي شریکانو څخه دی.

په تېرو شلو کلونو کې هم هندوستان په افغانستان کې پراخې بیارغونې وکړې. د سلما بند، د افغانستان د پارلمان د ودانۍ جوړولو، د تعلیمي نظام پراختیا او افغان محصلینو ته د تحصیلي بورسونو ورکولو په برخو کې مهم رول لوبولی دی. د همدې لاملونو له امله، افغانستان هوډ لري چې له هند سره خپلې سیاسي، اقتصادي او تجارتي اړیکې وساتي او پراخې کړي.

د افغانستان اسلامي امارت ډاډ څرګند کړی چې له هند سره اړیکې د پاکستان او بل کوم هېواد په زیان هېڅکله هم نه دي. موږ وړاندې وویل چې د اسلامي امارت پالیسي اقتصاد محوري او له هر هېواد سره په متقابل درناوي ولاړې اړیکې دي. دا که هر څوک وي. افغانستان له کوم چا سره ستونزه نه لري، خو دا چې نور هېوادونه په خپل منځ کې څه ستونزې او کشمشکونه لري، اسلامي امارت د هغو مسایلو کې هېڅ علایق نه لري.

د افغانستان اسلامي امارت به هېڅکله د یوه هېواد د خوشحالولو په نیت له بل سره اړیکې سړې کړي او یا د بل خپګان په پار بل خوشاله کړي. افغانستان لسیزې لسیزې ترخه جګړه او د بارودو تنفس کړی. له جګړې او وینو دا راوتی ملت به هېڅکله بیا ونه غواړي چې بیا د کومې دسیسې ښکار شي او یا کومه جګړه پرې وتپل شي.

په دې تړاو یوه شنونکي د متوازنو اړیکو د ساتنې په تړاو په خپله لیکنه کې زیاتوي: «

د افغانستان بهرنۍ تګلاره د مثبت بې طرفۍ، ښې ګاونډیتوب او ملي ګټو پر اصولو ولاړه ده. دغه هېواد، چې د جنوبي او مرکزي آسیا ترمنځ د یوه پل حیثیت لري، غواړي له پاکستان او هند سره متوازنې، رغنده او باثباته اړیکې ولري. افغانستان هیله لري چې د سیمې کړکېچونه کم شي، اقتصادي او ډیپلوماتیکې اړیکې د دې لامل شي چې د سیمې خلک سوکاله او باثباته ژوند ولري.»

د اسلامي امارت په بیا واکمنۍ د کابل او نوي ډهلي اړیکې غوړېدلې او هېڅ هېواد دې په دې تړاو تشویش نه کوي. تازه هند د چابهار بندر له لارې د همکاریو د زیاتوالي ډاډ ورکړی دی. همدرانګه دې هېواد تازه د خپل نوي کال د بودجې د اعلان پر وخت بهرنیو هېوادونو سره د مرستو اندازه هم اعلان کړه چې افغانستان ته یې یو میلیارد روپۍ ځانګړې کړې وې.

اسلامي امارت په خپل وار هندي لوري ته ډاډ ورکړی چې له هندوستان سره د افغانستان اړیکې به د متقابل احترام او ګډو دوه اړخیزو مشروع ګټو په رڼا کې پر مخ ځي او د نورو هیوادونو له خپلمنځي سیالیو او شخړو څخه به نه اغېزمنېږي.

د اسلامي امارت له بیاځلي واکمنېدو وروسته له بېلابېلو هېوادونو په ځانګړې توګه د سیمې له هېوادونو سره د ډیپلوماټیکو او اقتصادي اړیکو د ټینګولو لپاره جدي هڅې پیل کړي دي.

د دغو هڅو په پایله کې بېلابېلو هېوادونو کې د افغانستان د سفارتونو مسئولیت اسلامي امارت ته سپارل شوی، ترڅنګ یې، د سرپرست حکومت ډیپلوماټان یوشمېر هېوادونو ته استول شوي او د سیمې له هېوادونو سره د سرپرست حکومت اقتصادي اړیکې هم په نسبي ډول پراخې شوې دي.

د دغو هڅو په دوام، د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیرخان متقي دې وروستیو کې متحده عربي اماراتو ته د خپل سفر په ترځ کې، د هغه هېواد د بهرنیو چارو له وزیر او د هند د بهرنیو چارو له مرستیال وزیر سره کتلي وو د هند د بهرنیو چارو مرستیال وزیر ویکرم مسري له امیرخان متقي سره کتنه کې ویلي چې هېواد یې له افغانستان سره د زېربنایي پروژو په پلي کولو کې همکاري کوي. هغه زیاته کړه چې هېواد یې، وروستیو درېیمو کلونو کې افغانستان سره بشردوستانه مرستې کړي او غواړي چې افغانستان سره زېربنایي پروژو کې هم مرسته وکړي.

متقي زیاته کړه چې غواړي، هند سره د سیمې اقتصادي او مهم هېواد په توګه سیاسي او اقتصادي اړیکې پیاوړې کړو. د هند بهرنیو چارو وزارت مرستیال هم وویل چې هېواد یې، لېواله دی، څو افغانستان سره سیاسي او اقتصادي اړیکې پراخې او چابهار له لارې تجارت ته وده ورکړي.

د هند بهرنیو چارو وزارت هم د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي چې دغه کتنه کې په نږدې راتلونکي کې د افغانستان د پراختیایي پروژو په برخه کې د هند د همکارۍ په اړه پرېکړه شوې.

تازه شمشاد ته هند کې یوې سرچینې منلې چې په نوي ډیلي کې اسلامي امارت ته سفارت سپارل کېږي او زیاتوي، اسلامي امارت له دې وړاندې هند ته ځینې کسان د ډیپلوماټانو په توګه هم ورپېژندلي. شمشاد په خپلې ویپاڼې یادې سرچینې له قوله وړاندې لیکلي: زه د خپلو همکارانو او افغان ډیپلوماټانو د مالوماتو له مخې دا تائیدوم چې د افغانستان سرپرست حکومت ته په نوي ډیلي کې د افغانستان سفارت د ورسپارلو په تړاو او د هند بهرنیو چارو له وزارت سره له څو میاشتو خبرې روانې دي او د هند حکومت ته ځینې اشخاص هم ورمعرفي شوې دي.

په دې تړاو د بهرنیو چارو وزارت څه نه وایي، خو د سیاسي چارو شنونکي بیا دغه ګام د افغانستان سیاسي ثبات ته پر رسېدو سربېره ټولنیزو او کلتوري اړیکو ټینګښت او پراختیا لپاره مهم بولي. په دې تړاو شمشاد ته د سیاسي چارو شنونکي معین ګل ځمکنۍ ویلي: « وار له مخه د افغانستان سفارت یو شمېر افغاني ډیپلوماټانو ته تسلیم شوی، نو دغه د اړیکو په جوړولو کې، که هغه سیاسي وي، اقتصادي وي، فرهنګي وي، ډېر اهمیت لري. دغه کار به وکولی شي چې له نورو سره د تعامل لپاره یوه لاره پرانیستل شي چې بالاخره پایله کې یې د افغانستان حکومت هغه سیاسي ثبات ترلاسه کړي.»

څو میاشتې وړاندې اسلامي امارت په هند کې د افغانستان کونسلګرۍ ته اکرام الدین کامل د سرپرست په توګه وګوماره. د نوموړي له ګومارنې سره هممهاله بهرنیو چارو وزارت وویل چې له نورو هېوادونو سره یې هم د اړیکو د پراخولو هوډ کړی.

# هجوم اشغالگرانه
# و شکست مفتضحانه شرق و غرب در افغانستان

**محمد مجاهد**

در نخست توجهِ همه‌ی خوانندگان گرامی روزنامه وزین(شریعت) را به شعر علامه اقبال جلب می نمایم.

**آن نگنجد در جهات ای هوشمند**
**مرد حر بیگانه از هر قید و بند**
**حر ز خاک تیره آید در خروش**
**زانکه از بازان نیاید کار موش**

افغانستان در قلب آسیا بحیث شاهراه بزرگ ابریشم، مرکز تمدن های بزرگ، محل برخوردها و فرهنگ ها، تولیدگاه فکر و اندیشه، مهد بزرگ مردانِ مجاهد و جولانگاه محدثین، مفسرین، فقها، متکلمین، متصوفین، اصولین، فلاسفه و شاعران چیره دستی چون بلخی، جامی و بیدل که در امتداد تاریخ نقش بالندگی مجاهدت، رشادت و تمدن سازی خود را در جغرافیای فرهنگی و اجتماعی باختر و خاور به یادگار گذاشته اند. موقعیت جیوپولیتیک این کشور بحث معبر دایمی جهان گشایان و مهاجرت‌های کلان در امر تشکیل و تکامل اجتماعی ارثیه مشترک دینی، عقیدتی، تاریخی و فرهنگی اقوام ساکن کشور تأثیرات مهمی داشته و از جانبی پیچیدگی‌های ویژه به این کهن بوم و بر بخشیده است، که در هم آمیختگی شیوه ها و ساختارهای اجتماعی، مذهبی، قومی، نژادی و فرهنگی را می‌توان از نتایج مثبت آن برشمرد. باسقوط راه ابریشم که اکنون خادمین واقعی نظام اسلامی(امارت اسلامی) در صدد احیای این مسیر باستانی است؛ افغانستان را در بوته فراموشی و انزوا قرار داده بود و از ترقیات و پیشرفت های جهان متمدن فرسخ ها عقب مانده بود؛ بعدها در اواخر قرن نوزدهم کشور عزیزمان افغانستان بار دیگر در جغرافیای منطقه، بحیث منطقه‌ای حایل بین دو ابر قدرت قرار گرفت. روسیه تزاری به منظور رسیدن به آب‌های گرم، افغانستان را مساعدترین راه برای رسیدن به اهداف خود تشخیص داد؛ عامل بازدارنده پیشروی روسیه، انگلیس به اصطلاح (بریتانیای کبیر)بود. افغانستان بحیث کشور حایل بین مستعمرات انگلیس و روسیه تزاری پیوسته هدف تجاوز قدرت‌های استعماری شرق و غرب قرار گرفت. با بررسی و واکاوی تاریخ درخواهیم یافت، که مردم مجاهد افغانستان در برابر استعمار و متجاوزین همواره با پایمردی و شهامت بی‌نظیر به مجاهدت برخواسته و همه‌ی مهاجمان متجاوز اشغالگر را به شکست های ننگین مواجه ساخته اند. ولی استعمارگران با نیرنگ های مختلف و ضعف حکومت های ضد ملی و گاهاً ضد اسلامی، جنبش‌ها، حرکت ها و قیام های رهایی بخش مردم مجاهد افغانستان را به سرکوب های خونین مواجه ساخته اند.

کودتای ننگین هفتم ثور ۱۳۵۷ هجری شمسی آغاز فاجعه بزرگ در کشور ما به حساب می رود، که پیامد آن مداخله خارجی یعنی مداخله نظامی و اشغالگرانه شوروی سابق و سپس تجاوز اشغالگرانه امریکا و متحدانش را در پی داشت.

تجاوز نظامی شوروی سابق به این سرزمین که توأم با آورگی و مهاجرت میلیون ها تن آغاز و در ادامه جهاد در برابر تفکرات الحادی، هستی مادی اش را تقریباً از دست داده بود.

لذا با تجاوز شوروی قضیه افغانستان از بُعد منطقه‌ای خارج و بُعد بین المللی را به خود گرفته بود.

رژیم منحوس کمونیستی و سران ملحد وابسته به شوروی بدترین شیوه‌های ظلم، استبداد و اختناق را بالای مردم مسلمان افغانستان به آزمایش گذاشتند، که این موضوع موجب قیام های آزادی بخش و خود جوش ملی در کشور گردید.

مع الاسف شایان ذکر است، که فقدان زعامت سیاسی واحد و تحمیل رهبری ناسالم برخی از تنظیم های بالای جنبش‌های خود جوش امت، فاجعه‌ای دیگری بود که مردم مسلمان افغانستان را به آن مواجه ساخت.

پیروزی تنظیم های جهادی که مردم افغانستان آنها را منادیان و مجریان صلح، امنیت، عدالت اخوت و ترقی اجتماعی، فرهنگی و اسلامی می‌پنداشتند، به آرزوهای مردم مهر یاس و ناامیدی گذاشت و کشور بار دیگر به صحنه‌های مختلف در گیری های تنظیمی، قومی و مذهبی میان افراد وفادار به دوستم، مسعود، مزاری، سیاف، حزب و جمعیت تبدیل گردید.

ستم‌ها و ظلم هایی را که حتی رژیم کمونیستی به این مردم روا نداشت، این شیفته گان قدرت بالای مردم مظلوم افغانستان به نمایش گذاشتند.

میخ در سر کوبیدن ها، سینه بریدن ها، رقص پیکرهای بی سر، یتم های دربدر و تجزیه کشور از برجسته ترین کارکردهای حکومت پاتک سالار شر و فساد در افغانستان تلقی میگردد.

ارزیابی‌های دقیق بیانگر این واقعیت است، که تنظیم های وقت در افغانستان بنابر تعلقات قومی، گرایشات شخصی، وابسته بودن به بیگانگان، نادرست بودن دیدگاه ها، نا مشخص بودن اهداف و نداشتن طرح جامع برای ساختار سیاسی کشور و عدم خط فکری روشن و فراگیر در مسیر تاریخ، مهر شرمساری و سر افگندی را بر جبین تاریک خود حک نمودند.

گستردگی فساد، خرج ومرج، ظلم و تعدی، تعصب و تبعیض، تجزیه کشور و آوارگی مردم به نقطه‌ی صفری اش رسیده بود.

در آن گام ضرورت ظهور فرشته‌گان صلح و امنیت آرزوی مردم رنجدیده افغانستان بود، که خوشبختی و آسایش را بیش از هر زمان دیگر در این سرزمین به ارمغان آورند.

سرانجام فرزندان راستین وطن، پیغام آوران صلح و امنیت، عزت و شکوهمندی، افغانستان را از چنگال نا مطلوب ترین انسان نماهای قرن نجات و کشور را به سوی افق آزادی و روشنایی سوق و کشتی طوفان زده را به ساحل رساندند.

در آن زمان به رهبری امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد نظام اسلامی تحت عنوان (امارت اسلامی افغانستان) به منصه عمل نشست و نخستین نظامِ اسلامی در دنیا بود، که از هیچ بانک داخلی و خارجی بویژه بانک جهانی مقروض نبود.

میزان جرایم، فساد و ظلم تا حدی زیادی کاهش یافت، امنیت روز به روز بهتر و مستحکمتر گردید و مردم با تکیه به استعدادها و توانایی‌های خویش برای ترقی و بهبود کشور خود تلاش می‌کردند.

استعمارگران از آن وضعیت مطلوب و فوق‌العادهِ که مردم افغانستان کمایی کرده بودند، نگران بودند و می ترسیدند که افغانها می توانند الگوی را پیش ببرند، که در نهایت اقتصاد جامعه‌ی غربی از آن زیان ببیند.

خطر دیگری که امریکا و سایر دول غربی از آن احساس نگرانی می کردند، این بود که اگر امارت اسلامی افغانستان بتواند، بدون قرض گرفتن از صندوق بین المللی پول و بانک جهانی ادامه حیات دهد، معنی اش این است، که دیگر کشورهای دنیا نیز می‌توانند این کار را انجام دهند.

از این جهت امریکا به بهانه‌ی حملات یازدهم سپتامبر و حضور رهبر جهادی القاعده، در افغانستان؛ به این کشور توسط پیشرفته ترین تسلیحات نظامی و بمب‌افگن های بی ۵۲ و پیاده نظامِ از اجیران حلقه به گوشش حمله کرد. سران دستگاه فاسد کانتری و پاتک سالار، پیوسته در خواستِ بمباران‌های پیاپی را در نقاط مختلف کشور اسلامی ما از طاغوت زمان، امریکا مستکبر می کردند. بدون شک که این جمله ننگین تا ابد در ذهن مردم مسلمان افغانستان محک شده باقی خواهد ماند. تهاجم گسترده‌ای امریکا به کشوری اسلامی ما سبب سقوط کابل شد. با سقوط کابل به عنوان پایتخت افغانستان زمینه برای تحقق برنامه‌ها و اهداف امریکا و سایر مستکبران اشغالگر فراهم شد. اشغال آشکار این کهن بوم و بر، تحکیم سیاسی طاغوت و پیروانش و مستولی شدن فاسدترین افرادِ روی زمین در کابل مصیبت بود بی نهایت کلان و شامل حالِ ملت شد، که بیشتر از یک میلیون شهید را برای آزادی و حاکمیت اسلامی در برابر اشغالگران سرخ کمونیستی تقدیم نموده بود. بنابراین آنانی که دل شان در بند بندگی مقام و موقعیت های کاذب بود و چشم های تنگ خود را بر روی واقعیت‌های انکار ناپذیر بسته بودند، شیفته و شیدای تبلیغات مزخرف لیبرالیسم و بردگان آنها شدند هم چون شب پره از رؤیت آفتاب ناتوان بودند. حمایت همه جانبه فراعنه عصر، سلطه طلبان مطلق العنان از سکولارهای طمعکار، دین ستیز، دون صفت و سست عنصر و ترویج فرهنگ مبتذل حیوانی غربی در میان ملت مسلمان افغانستان و غارت گسترده‌ای منابع زیرزمینی در معرض دیدگاه همگان قرار گرفته بود، که غیر قابل انکار است. استعمارگران تمامیت خواه غربی پس از شکست شوروی در افغانستان، در عرصه‌های گوناگون هم چون فرهنگ با بهره‌گیری از کارشناسان کار کشته برای نفوذ در اندیشه ها و باورهای ملت مورد تهاجم(افغانستان)برنامه‌ریزی کوتاه مدت و بلند مدتی نمودند. امریکا و سایر مستکبران به خوبی می‌دانستند که پیش از اشغال افغانستان به وسیله نیروی نظامی لزوماً باید قَلعهٔ قلوب و عقول باورهای تعدادی هرچه بیشتری را از قوماندانان تنظیم ها، پاتک سالاران و به اصطلاح روشن فکران طمع کار و ناپخته توسط اندیشه های بیمار وارداتی، تبسیط جزمیت های متحجرانه قومی و ترویج تعصبات خام منطقه‌ای تسخیر نمود.

پس از هجوم نظامی و ساقط کردن امارت اسلامی افغانستان برخی افراد دون صفت در دام پول، مقام و شهرت گرفتار گردیدند و با حمایت همه جانبه سیاسی، اقتصادی، استخباراتی، نظامی و همراه طیاره های نظامی آورده و به سرنوشت ملت حاکم نمودند، تا زمینه‌ی اهداف استعماری بیگانه‌گان متجاوز بهتر فراهم گردد.

کسانیکه حاکمیت فکری، فرهنگی، سیاسی، اقتصادی، استخباراتی و نظامی استعمارگران را در دو دهه پسین انکار می‌کنند و در پی تطهیر چهره‌های فاسد رژیم دست نشانده طاغوت در افغانستان هستند، سهم بسیار بزرگی از خوی خامی و خط خیانت را در ذهن آلوده‌ای خود تقویت نمودند.

بدون شک اگر سلطه جویان خارجی بر پایه‌ی باورهای استعماری و مصالح مادی و سیاسی خود، باورهای دینی، فرهنگی و ثروت ملتِ متدین افغانستان را مورد هدف قرار دادند، اجیران، مزدوران، غلامان حلقه به گوش و فرقه های جعلی(تکه داران قومی )نقش سرک پاکن، راهنماء و همکار را در برابر کسب مال، مقام و شهرت را به یدک کشیده بودند.

فجایع سیاسی، فرهنگی، دینی و استراتیژیکی را که استعمارگران امپریالیستی پس از اشغال نظامی در سال ۲۰۰۱ در کشور عزیزمان افغانستان پدید آوردند، آنقدر عظیم و گسترده است، که به هیچ وجه با تهاجم قدیم صلیبی ها، مغول ها و اتحاد جماهیر شوروی کمونیستی قابل مقایسه نیست.

به گواهی تاریخ سالانه مردم افغانستان بیش از دو میلیارد دالر به آن رژیم رشوه پرداخت می‌کردند، پنج میلیون تن به اعتیاد مواد مخدر آغشته، میلیون ها تن به بیماری مهلک ایدز آلوده و رژیمِ افغانستان عنوان فاسدترین حکومت روی زمین را کسب کرده بود.

آزادی از نوع غربی(بی حجابی)به سرعت رونق گرفت بود، شراب خانه ها و مراکز قمار و فحشا در شهرها دایر گردیده بود، دختران افغان برای شرکت در مسابقات ملکه‌ی زیبایی تشویق شده بودند و عملاً چنانچه بود اجراء می کردند، بانک‌ها برای ارائه‌ی تسهیلات ربوی به رقابت می پرداختند، آموزه‌های قرآنی مهجور شده بودند، هویت دینی و مذهبی مسئله شخصی عنوان می شد، ارزش های اسلامی مورد تمسخر قرار می‌گرفت، فعالیت های تبشیری عیسوی بسیار حساب شده و با برنامه انجام می شد و کسانیکه از دین اسلام مرتد می شدند، مورد تکریم و اعزاز دولت‌ها و محافل جهانی عیسویت قرار می گرفت.

بنابراین جهاد و مبارزه با طاغوتیان اشغالگر از اهداف مقدس و از لوازم بصیرت دینی امتِ است، که از متن جامعه برخواسته و آن را زنده نگه می‌دارند.

سرانجام یکی از اهداف نظام اسلامی که شکست اشغالگران و کسب حُرّیت و آزادی سیاسی بود، در اسد ۱۴۰۰ در معرض دید همگان قرار گرفت و تحقق یافت.

# اقتصاد ته د رُشد ورکولو لپاره د اسلامي امارت غوره اقدامات!

**م حمادشیرزاد**



نړۍ کې حکومتونه مکلف دي چې د خپل حکومت د تداوم او رعیت ته د غوره خدماتو لپاره ورځ تر بلې آسانتیاوې راولي، اقتصادي کارونه ترسره کړي او داسې رُشد ورکړي، چې دوام ومومي او د ډېر وخت لپاره د هېواد او ولس لپاره د خیر سبب شي، موږ همدا څو ورځې وړاندې په ازبیکستان کې د حکومت له لوري د دوی اقتصاد ته رشد ورکول وکتل، چې سرمایه ګزارانو ته یې له برښنا، ګاز او نورو اړوندو شیانو نیولې تر ځمکو پورې ټولې اسانتیاوې برابرولې او تر خپلې اندازې سرمایه ګزارۍ باندې د هغه مودې لپاره له مالیاتو معاف وه.

متأسفانه چې افغانستان کې خو لومړۍ د یرغلونو له امله او همدا راز دلته د بېلابېلو پاچاهیو او دولتونو په راتګ سره اقتصادي رشد او اقتصاد ته په هغه اندازه کار نه دی شوی، کوم ته چې افغانستان اړتیا او ضرورت لري، ډېر وختونه دلته داسې کارونو ته ملاتړ شوې وه، چې هغې د افغانستان اقتصاد ته وده ورکولای شوه، خو متأسفانه چې د شخصي جیبونو د ډکولو له امله یاد رشد هم نه دی ترسره شوی.

خو دا هم یو حقیقت او واقعیت دی چې د پرمختګ، اقتصادي رشد او آبادۍ لپاره امنیت له ټولو اړین شرط دی، چې الحمدلله اوس افغانستان ترېنه برخمن دی، اوس همدې امنیت څخه په هره برخه کې غوره او اعظمي استفاده کول د حکومت او دولت په کامیابۍ دلالت کوي او همدا استفاده به د دې دولت د استحکام، ټینګښت او پایښت لامل کېږي هم.

اسلامي امارت که څه هم د زیاتو بندیزونو ښکار دی، خو د بندیزونه سربېره یې بیا هم ډېر ستر ستر کارونه په هره برخه کې ترسره کړل، چې نوی اقدام یې اقتصاد او تجارت د رشد ورکولو په برخه کې و، یاد اقدام که په غوره توګه پلي شي، نو زه متیقن یم چې دا کړېدلی او ځورېدلی هیواد به ډېر زر په خپلو پښو ودرېږي او په زیاتو اړتیاوو کې به د نورو له احتیاج خلاص شي، خو که په اخلاص او صداقت سره کار ترسره شي.

څو ورځې وړاندې د هېواد عدلیې وزارت له لوري د تجارانو او سرمایه ګزارانو لپاره د نوو اسانتیاوو د کړنلارې او طرز العمل اعلان وشو، چې په کې ډېرې مهمې پرېکړې ترسره شوې، اوس افغانانو ته په کار ده چې اقدام وکړي او له دغه زرین فرصت څخه اعظمي استفاده وکړي، تر څو ځان، هېواد او خپل کړېدلي ولس ته خوښۍ او خوشحالۍ راوړي.

په دغه پرېکړو کې لومړۍ دا وه چې هغه صنعتکاران او سوداګر چې په نوې صنعتي برخه کې سرمایه ګزاري کوي، نو د کارکوونکو له مالیې پرته د نورو ټولو مالیاتو څخه د ۵ کلونو لپاره معاف دي، همدا راز دوی د ماشین آلاتو او نورو وارداتي وسایلو د ګمرکي محصول څخه هم معاف دي، همدا راز دغه صنعتکارانو ته د افغانستان لاس دوه عراده موټرو پرته له کوم محصول راوړلو اجازه ده، په یادو پرېکړو کې یو دا هم ده چې د ټیټې کچې سوداګرو له موجودو اموالو څخه به ګمرکي محصول نه اخیستل کېږي.

د عدلیې وزارت له لوري په خپرو شویو دغو پرېکړو کې دا هم راغلي چې د بهرنیو مشخصو فني انجنیرانو لپاره د هیئت د تائید وروسته دوه کلنې ویزې ورکول کېږي او همدا راز یادو صنعتکارانو ته به د کابل نوي ښار او یا هم د ښار جوړولو وزارت اړوند نورو ښارګوټو کې یوه نمره ځمکه هم ورکول کېږي او دا چې دوی ته به په صنعتي پارکونو کې د کارخونو لپاره ځمکه په وړیا توګه ورکول کېږي، وروستۍ پرېکړه کې یادو صنعتکارانو ته د نورو اسانتیاوو د رامنځته کولو سربېره د هیواد معدنونو او زراعتي ځمکو اړوند ادارو ته هم ورپېژندل کېږي او لومړنی حق به دوی ته ورکول کېږي.

یادې غوره پرېکړې که په واقعي معنی عملي، تجاران او سرمایه ګزاران ورته راجلب شي او دغه سرمایه ګزاران د افغانستان د اړتیا وړ شیانو کې سرمایه ګزاري وکړي، نو په ډېر لږ وخت کې به هېواد په ډېرو برخو کې د نورو له اړتیاوو خلاص شي ان شاءالله.

# د افغانانو ګوزار خوړلی ځواک چې اوس هم د زوال کنده کې دی

**ارسلا حسان**

یوه داسې ورځ چې په کې یو نړیوال ښکرور بې ښکرو وی، له زور، ځواک، لاپو شاپو لوېدلی، د ځواکمنو له لیست څخه د کمزوریو لیست ته تللی او د تاریخ په پاڼو کې په داسې نوم نومول شوی چې بچې به یې هم درس ترې اخلي. دا ورځ د دلوې ۲۶ مه یادوم چې د وخت جابرو سرو لښکرو (شوروي اتحاد) په کې له افغان مسلمان مېړني ملت څخه ستره ماتې منلې ده.

د ۱۳۵۸ هـ.ش د جدي په ۶مه (۱۹۷۹ د دسمبر ۲۷مه)، شوروي اشغالګر ځواکونه افغانستان ته داخل او د کمونیستي حکومت د ساتلو لپاره یې نظامي یرغل وکړ. دا اشغال له سخت مقاومت سره مخ شو او افغان مجاهدینو د شوروي ځواکونو پر ضد اوږده جګړه وکړه. د دې جګړې پر مهال شاوخوا یو نیم میلیون افغانان شهیدان، دوه میلیونه بې کوره او سلګونه زره نور مهاجر شول.

کله چې شوروي اتحاد غوښتل چې افغانستان اشغال کړ، دوی د خپل راتګ لپاره له بېلابېلو لاملونو په استفاده د یرغل زمینه سازي وکړه. د کمونیستي رژیم کمزوری حالت - د ۱۳۵۷ د ثور کودتا وروسته، د نور محمد تره‌کي، حفیظ الله امین، او ببرک کارمل تر مشرۍ لاندې کمونیستي رژیمونه واک ته ورسېدل، خو ولس یې نه مانه او د مقاومت جبهې جوړې شوې.

همدارنګه شوروي اتحاد غوښتل چې افغانستان د خپلو کمونیستي ایدیالوژیو مرکز جوړ کړي، څو په سیمه کې خپل نفوذ وساتي او د امریکا نفوذ کم کړي او د دې ترڅنګ یې له اسلامي پاڅونونو هم ژوره وېره درلوده، د شوروي مشرانو اندېښنه لرله، که اسلامي جهاد بریالی شي، نو دا به د منځنۍ آسیا کمونیستي جمهوریتونو ته هم خپور شي او د دوی لپاره به یو لوی سرخوږی جوړ او د کمونیستي اهدافو مخنیوی به یې وشي.

بلخوا دې اتحاد فکر کاوه، که افغانستان پرېږدي، نو امریکا، پاکستان، او ایران به د مجاهدینو ملاتړ ته دوام ورکړي او دا هېواد به د شوروي ضد اډه جوړه شي.

همدې پورته لاملونو ته په کتو شوروي اتحاد په رسمي ډول اعلان وکړ چې د افغانستان حکومت د ملاتړ لپاره خپل سرتېري استوي، خو حقیقت دا و چې دوی غوښتل افغانستان بشپړ اشغال کړي.

۱۰۰ زره شوروي سرتېري د افغانستان مختلفو برخو ته داخل شول. د کې.جي.بي (KGB) ځانګړي ځواکونه د کابل دارالامان ته داخل او د خپلو متحدینو په توسط یې حفیظ الله امین وواژه.

کله چې شوروي اتحاد د ۱۹۷۹ کال د دسمبر په ۲۷مه پر افغانستان یرغل وکړ، حفیظ الله امین د افغانستان ولسمشر و.

هغه له دې مخکې، د ۱۹۷۹ کال د سپټمبر په میاشت کې د نور محمد تره کي له لرې کولو وروسته قدرت ته رسېدلی و، خو د شوروي یرغل په لومړۍ شپه، امین د شوروي ځواکونو او د هغوی افغان متحدینو لخوا ووژل شو او ببرک کارمل د شورویانو په ملاتړ واک ته ورسول شو.

شوروي ځواکونو هوایي ډګرونه، مهم نظامي مرکزونه او د ارتباطي شبکو کنټرول په خپل واک کې واخیست.

شورویانو د کابل، کندهار، هرات، جلال‌اباد، او مزار شریف مهم ښارونه لاندې کړل.

د شوروي پر وړاندې د افغانانو مبارزه د تاریخ لـه مهمو او زړورو مقاومتونو څخه ګڼل کېږي. کله چې شوروي اتحاد د ۱۹۷۹ کال په دسمبر کې پر افغانستان یرغل وکړ، افغان مجاهدینو د خپلو اسلامي او ملي ارزښتونو د دفاع لپاره وسلې ته لاس واچاوه او د نهو کلونو لپاره یې د نړۍ له ستر زبر ځواک سره جګړه وکړه. د ایماني ځواک په وسیله د خپل دین، خاورې او ازادۍ لپاره وجنګېدل او همدا عقیدوي قوت یې د جګړې اصلي محرکه قوه وه. مجاهدینو د غرونو، درو او کلیو په استفادې د شوروي ځواکونو پر ضد چریکي بریدونه پیل کړل، چې دا تاکتیک د شورویانو لپاره لوی سرخوږی جوړ شو.

ولس د مجاهدینو ترڅنګ ودرېد؛ هغوی ته یې خوراک، پټنځایونه او مهمات برابرول؛ په تش لاس یې د یو داسې چا مقابله وکړه چې ځان یې د نړۍ ځواکمن او ښامار باله.

افغان مجاهدینو د شوروي پر ضد چریکي بریدونه، کمینونه او ښارونو ته نژدې حملې پیل کړې. د غرونو جغرافیه، د افغانانو ایماني قوت او د جګړې تجربې شورویانو ته درانه تلفات واړول.

د شوروي اتحاد په مجموعي توګه ۱۵۰۰۰ ډېر شوروي پوځیان ووژل شـول؛ ۵۰۰۰۰ ډېر ټپیان او معیوب شول. زرګونه ټانکونه، الوتکې، وسایط او بېلابېل نظامي تجهیزات یې له منځه ولاړل.

د میلیاردونه ډالرو زیان د شوروي کمزوری اقتصاد نور هم د تباهۍ خوا ته یووړ او یادو لګښتونو د شوروي اقتصادي سقوط ته لاره هواره کړه.

د شوروي اتحاد کمزورتیا له امله د کمونیستي بلاک هېوادونو مرستې بندې شوې، چې دا د شوروي اقتصاد ته یو بل لوی ګوزار و.

شوروي اتحاد ونه توانېد افغانستان تر خپل کنټرول لاندې وساتي، بلکې برعکس یې خپل نفوذ له لاسه ورکړ. د شوروي اتحاد د مشر میخاییل ګورباچوف د واک پر مهال، د افغان جهاد، سرښندنو، ایماني قوت او د شوروي اقتصادي ستونزو له امله، مسکو په ۱۹۸۸م کال کې د جنیوا تړون لاسلیک کړ چې له مخې یې باید خپل پوځیان وباسي.

د ۱۳۶۷ هـ.ش د دلوې پر ۲۶مه، د شوروي وروستی جنرال بوریس ګروموف په مړ ژواندې بدن په داسې حال کې له حیرتان څخه واوښت چې ویل یې: «زما تر شا بل هېڅ شوروي سرتېری نه دی پاتې.»

دا ورځ تاریخي بریا وه، چې د یوه ستر نړیوال قدرت پر ضد افغانانو خپلواکي تر لاسه او د شوروي اتحاد داسې زوال لامل شوه چې د تاریخ پاڼې به تل پرې ګواهي ورکوي.

د شوروي کمزورتیا د کمونیستي نظام د زوال سبب شوه، چې د ۱۹۹۱ په پای کې شوروي اتحاد په بشپړ ډول وپاشل شو.

# خلاقیت د پدیدو بقا تضمینوي

**عزیز**

افلاطـون ته راجع یو قول دی چې که زه د یوې ونې د وهلو ۶ ساعته وخت ولرم نو زه به ۴ ساعته د تبر په تېره کولو تېر کړم او ۲ ساعته به ونې وهلو ته بېل کړم. د تبر او ونې د وهلو اړوند یوه بله کیسه هم رایاده شوه، وايي یو مزدور غرمه مهال ځنګل ته ولاړ او تر ماښامه یې په ځنګل کې شاوخوا ۱۲۰ ونې ووهلې، بله ورځ ګهیځ مهال ولاړ، تر ماښامه یې ونې ووهلې، خو چې ویې ګڼلې؛ ایله یې ۱۰۰ ونې وهلې وې. بله ورځ د سهار له آذان سره سم ووت، تر ماښام ناوخته یې کار وکړ، خو چې یو وخت یې ونې ګڼلې؛ ایله یې ۸۰ ونې وهلې وې. دی حیران شو چې دا دوه ورځې زیات کار هم کوي، آن د سهار له اذان سره راځي، خو چې ونې شمېرې، ونې کمېږي او ورځ په ورځ کار کې د پرمختګ په ځای شاټګ کوي. دی نه پوهېده چې د هرې ورځې په تېرېدو او هرې ونې په غوځېدو سره تبر پڅېږي او باید تبر تېره شي او د تبر د ځواک ظرفیت لوړ شي.

په کیسو پسې کیسه؛ پر مایکروسافټ شرکت باندې د نوکیا شرکت د خرڅولو اعلان په موخه د مطبوعاتي کنفرانس پر مهال د نوکیا شرکت عمومي رییس او د امتیاز څښتن 'ستیو پلمر' خپله وینا په دې جملې سـره پای ته ورسوله: «موږ هېڅ نه یو تېروتي، خو بیا مو هم هر څه له لاسه ورکړل.»

کله چې هغه دا خبره وکړه، د ده په ګډون ټولو اداري غړیو اوښکې توی کړې.

نوکیا یو معتبر شرکت و، هغه په خپلو کړنو کې هېڅ غلطي نه دې کړې مګر نړۍ په چټکۍ سـره بدله شوه، دوی له زده کړو محروم پاتې شو، دوی ونه شو کولای له نړۍ سر سم ځان عیار کړي او ځان کې بدلون راولي او په دې توګه دوی په یوه لوی شرکت د اوښتو ارزښتناکه فرصت له لاسه ورکړ.

په دې سره یې نه یوازې د ډېرو پیسو ګټلو فرصت له لاسه ورکړ ، بلکې دوی د ژوندي پاتې کېدو فرصت لا هم له لاسه ورکړ!

دا موږ ته څه پیغام رسوي!؟

که تاسو له روانو حالاتو سره سم په ځان کې مناسب بدلون رامنځته نه کړئ، نو حتمي ده چې تاسو به د سیالۍ څخه بې برخې شئ.

که تاسو د عصر له غوښتنو سره سـم نوښتونه، خلاقیتونه او بدلونونه رامنځته نه کړئ او نوي شیان زده نه کړئ نظرونه او ذهنیتونه مو له وخت سره سـم نه پاتې کېږي، نو وخت تاسو لپاره نه تم کېږي او تاسې به د وخت په تېرېدو سره له پامه وغورځول شئ او له منځه به ولاړ شي.

دا نه یوازې تاسو وژني بلکې ستاسو د شریک او ستاسو د اهدافو سره اړوند با اهدافه نور اشخاص او د هغوی هیلې هم وژني!

یو انسـان تر هغه وختـه بریالی او ژوندی دی چـې زده کړې کوي، خلاقیت او نوښتونه رامنځته کوي او د عصر سره سم د ژوند په سیالۍ کې مخکښه وي، که فکر کوئ چې کافي زده کړې مو کړي او نور اړتیا نه لرئ نو ناکامۍ ته یې ځان جوړ کړ."

که یو څوک فکر کوي چې زما وخت تېر دی، اوس مې د زړېدو زمانه ده او زه نور څه نه شم کولی، دی خطا وتی. د ژوند په هره برخه او هر صنعت کې نوښت ممکن دی، دې پېړۍ کې د نوښت لپاره تر بل هر وخت زمینه برابره ده. نوښت د بریالیتوب کرنسي ده، نوښت نه یوازې د کار او ژوند ښایست دی بلکې د بریالتوب او چټک پرمختګ له ټولو لوی عامل دی. د بېلګې په توګه که یو څوک غواړي مالي خپلواکۍ ته ورسېږي نو نوښت ورته شارټکټ دی.

نوښت یو شعوري هڅه ده، نوښت نوي تقاضاوې رامنځته کوي او په ښـه ډول یې ځواب وايي، هرڅوک نوښتګر کیدای شي او هر څوک نشي کیدای، ځکه دا د فرد په هڅو، هوډ او پلان پورې اړه لري.

د نړۍ ستر بدلونونه د نوښت نتیجه ده، که نوښت نه وای هېڅ وخت به ټکنالوژي، انساني تمدن او اسانتیاوې دومره لوړ حد ته نه وای رسېدلي. نړۍ ورځ تر بلې په مخ روانـه ده، د پرون مفکورې، د کار کولو لارې چـارې او آلات د نن لپاره ځواب ویوونکي نـه دي. که کومه اداره ، شـرکت او ټولنه د تېرې ورځې په فکر، تولید، رسم او کړنلاره باندې متکي وي، نه یوازې چې بې عیبه به نه وي، بلکې د پرمختګ مخه یې په لوی لاس ډب کړي.

نه پوهېږم حدیث شـریف دی او که مقوله، که له عطار سره کېناستې نو د عطر بوی به درنه لاړ شـي او خوشبویي به یې تر نورو ورسېږي او که له پښ سره کېنئ نو که هېڅ تاوان در ونه رسوي، د انګار بڅرکي او سـپرغۍ به در ورسېږي. که تاسو پنځه ورځې له سوداګرو سره کینئ، نو شپږمه ورځ به تاسو ته د سوداګرۍ او مارکېټ فکر درکړي. که پنځه ورځې تاسو له نوښتګرو سره کینئ نو شپږمه ورځ به تاسو د نوښت په اړه فکر کوي ورو ورو به نوښتګر شي. که پنځه ورځې تاسو له سیاسونو سره کینئ نو شپږمه ورځ به د سیاست لارې ګودرې درمالومې وي. معنا دا چې ستاسو راتلونکی او ستاسو خصلتونه ستاسو د شاوخوا خلک او محیط درټاکي. پرته له شکه که دا اوس د افغانستان په ټولو پوهنتونونو کې یوه سروې وشي، نو وبه ګورئ چې نږدې ۹۸ سلنه محصلان ددې لپاره لوړې زده کړې کوي چې یوه دنده ترلاسه کړي خو ۲ سلنه به هغه خلاقه محصلین وي چې د کار آفرینۍ په فکر کې وي. لوی او نوښتګر انسانان په ننګونو کې فرصتونه لټوي.

که موږ د اوږد مهالي بې کاري مخه نیسو خو نوښت دا کار کولای شي، ځکه نوښت د کار آفریني سرچینه ده. که فکر وشي په افغانستان کې د نوښت له ټولو ستر خنډ زموږ او ستاسو فرهنګي، تعلیمي، تحصیلي او کاري شرایط دي. موږ د دې پر ځای چې یو څوک خلاقه رالوی کړو، د هغه سترګې او عقل ورتړو. کورنی اقتصاد، نالوستي ټولنه، د خلکو ټیټ ذهنیت، جګړه او ټولنیزې ناخوالې،... نور هغه لاملونه دي چې موږ نوښت ته نه پرېږدي.

ما ډېری وخت لیدل چې ځینې محصلین یـوازې د نومرو او کادري فراغت په غم کې وي، خو سبا چې دوی یوازې د طوطیانو او روباټونو غوندې فارغ شي، هېڅ هنر او کار نه لري او نه یې حتی په خپل ۴ کلن تحصیلـي دوران کې مارکېټ، بازار، خیریه او رضاکار کار کړی وي، نو بیا حکومت ملامتوي چې دوی ته ولې کار نه ورکوي. ښه به دا وې متوسطه نمرې ولرئ او ترڅنګ په مهارتونو او نوښت فکر وکړئ. تاسره به ستا سل سل نومرې مرسته ونه کړي، نه به ډګریانې ستا درد دوا کړي، تاته ستا زده کړې مهارتونه مرسته کولی شي.

د سامسونک کمپنۍ په اړه ویل کېږي چې یوه تن پیل کړې خو نن تر ۲۸۷۰۰۰ نه زیاتو کسـانو ته کاري فرصتونه رامنځته کړي دي. ستیو جابز او دوه ملګرو یې په ۴۰ ډالره په ګیراج کې د اپل بنسـټ کېښود خو اوس یې شاوخوا څلور سوه زره کسانو ته دندې پیداکړې، زرګونو اختراعاتو له ډلې یې ۳۶۰ اختراعات یوازې د سـتیو جابز په نوم ثبت دي. هغه کمپنۍ چې ګراج نه پیل شوه اوس ایفون او لسګونه نور داسې محصولات بازار ته وړاندې کوي چې درلودل یې د سـلګونه میلیونو خلکو لوی ارمان دی. همداسې مایکروسـافټ، ال جي،.... دا باور غلط دی چې د ټکنالوژۍ په پرمختک سـره انسانان بې کاره کېږي. د موټـرو په رامنځته کېدو خلکو دا باور درلود چې په زرګونه خلک به بې کاره شي خو کله چې موټر بازار ته راغلو نو په لسګونه زرو خلکو ته کاري فرصتونه ایجاد شـول؛ اوس د موټرو تخنیکران شول، څوک مسـتریان، څوک ډرایوران، چا ماموریتونه په کې واخیستل او ځینې د تخلیې او باګیرۍ لپاره استخدام شول.

په نړۍ کې ډېری لوی لوی نوښـتونونه هغه کسـانو کړي چې یا یې پوهنتون نه وو لوستی یا ترې په نیمه کې پاتې شوی. د بېلګې په توګه ستیو جابز اپل کمپنۍ یې رامنځته کړه، بیل ګېټس مایکروسافټ رامنځته کړ، مارکزوکربرګ فېسبوک رامنځته کړ، ریچرډ براسون، انیشتاین، جک ما، آډیسون،... خو دوی غوښتل چې نوښت وکړي او انسانانو ته چوپړ وکړي. پـه دې بېلګې دا نه توجیه کوو چې خـدای مه کړه پوهنتون، مدرسه، ښوونځی د سړي خالاقانه کرونده لولپه کوي؛ بلکې هدف دا دی چې دې خلکو له ځان پرته د نورو انسانانو لپاره هم د خیر ښېګڼې فکر کړی و.

نوې ایدیا او مفکوره له کومه کړو؟

لومړی باید د سـختو کارونو هوډمن واوسو. هغه انسانان چې راحت طلبه وي، په ټول ژوند کې هم هوسا ورځ نه شي لیدلی. یعنې سختۍ به زغمئ. دویمه دا چې هر انسانان باید ډایرۍ او د نوټ کتابچه ولري، د خپل ذهن او فکر هر څه ولیکي او وساتي. دغو خلکو ته چې پورته مو یې ذکر وکړ، له اسمانه کارونه نه دي الهام شوي، بلکې هر څه کې یې غور او فکر کړی دی.

یوه وړه کتابچه له ځان سره ولرئ، هر چېرته چې مو نوي څه ولیدو ځان سره یې نوټ کړئ.

فرض کړئ که نوي کور یا موټر، یا نوي کار پیلوم... نو امکانات او حل به څنګه ورته پیداکوم، په حل ارزي کنه. که نه شي حل نو څه به وشي او په حل کېدو یې زه څومره وده کوم...

هغه کسان چې د مخیلې قوي ځواک ولري، قوي نوښتګر هم وي. زما به نظر تخیل او نوښت لکه شخصیت او لیکوالی ورو ورو وده کوي. نو ښه ده خپل تخیل او نوښت ته د ودې لارې چارې ولټوو.

ډېر کتابونه ولولئ، د میلیونرانو، میلیاردانو، مخترعینو ژوند لیکونه، نوې څېړنې او نور...

شعر او ادب

## آشوب دوران

**عبدالرقیب جهید**

در این عصرِ آشوبزا جهان اندر خطر بینم
مسلمانانِ گیتی را به هر سو در بدر بینم
نگر آماجِ ترفند ها ارزشها و کلتور ها
به گردابِ بلا درگیر بنی نوع بشر بینم
شرارت پیشگان آتش زده برخرمنِ هستی
زِ فرطِ نار سایی ها بشر خونِ جگر بینم
به هر سو بنگرم ظلم وفساد کافران جاری
اسیرِجالِ طاغوت مردمان زیر و زبر بینم
نگر ظلم صلیبی ها و صهیونیزم بر غزه
شنو زنگِ خطر بر خیز مسلمان بی خبر بینم
زمین مشحون از جور و ستم از ظلمِ شیادان
فضا شد تیره و تار آتشِ جنگ شعله ور بینم
فراگیرست زِ بیدادِ کفر یکسر جهانِ ما
زِ نا امنی و استبداد هر جا شور و شر بینم
در این پرتگاهِ آشوبزا چو مردانِ دلیر بستیز
اسارت بشکن و بگذر وگرنه دردِ سر بینم
پیامِ حق شنو از دفترِ قرآنِ عظیم الشان
که امواجِ مفاسد یکسره در بحر و بر بینم
زِجان و تن تلاش فرما برای اعتلایِ اسلام
که در راهِ خدا قربان شدن را یک هنر بینم
به جز از رزم و ایثار کی شود حل مشکلِ مایان
که اندر عشقِ محبوب این اثر را پُر ثمر بینم
زِپا افتادگانیم اندرین منزل هراس و بیم
نداریم توشه یِ مطلوب خطر اندر سفر بینم
خدایا دستگیرِ بی نوایانی بکن رحمی
بهِ هرسو س مردمِ مظلوم داغ اندر جگر بینم
جهید بنوشت باخونِ دل چامه یِ اینجا
که آنجا شاد و خندان مومنان را جلوه گر بینم



# جنگ نرم و عرصه های آن

پوهنمل محمد ذکریا(رضایی)


## چکیده

جنگ نرم از جمله مغلق ترین شیوه به منظور تأثیر گذاری بر شجاعت، عقل، روانی، اراده ی انسان ها و عقیم ساختن هدف مورد نظر از تبارز هر گونه عمل و عکس العمل است، به همین بنا است که عملیات روانی امروز در کنار سایر ابزارهای قدرت بخش مهمی از دولت داری به حساب می آید.

جنگ نرم عبارت از دستکاری عقاید از طریق بکار گیری یک یا چند رسانه ارتباطی است ماهرین استخباراتی،کارشناسان سیاسی ودکتورین نظامی به این باوررسیده اند که جنگ نرم آن طوریکه تجربه ثابت ساخته است از جمله مؤثرترین وکاراترین سلاح و شیوه جنگی در دوران معاصر می باشد که علیه فکر،عقیده شجاعت اطمینان و بی میل ساختن طرف مقابل به جنگیدن است این نوع جنگ درعین حال از آن جاییکه نوع دفاع به شمار می رود وضمناً دارای حالات تهاجمی نیز می باشد که تأثیرات قابل مشاهد بخاطر رسیدن به هدف با کمترین هزینه را دارا می باشد.

قابل تأسف است با وجود تبعات منفی و بر انداز فکتورهای فوق تا هنوز کدام اقدام و استراتیژی کارا و اثر گذاری که بتواند حد اقل در جلوگیری و بی اثر ساختن تبلیغات (عملیات روانی) کشور های همسایه و یا کدام اقدام و برنامه که سبب بسیج دست اندر کاران امور کشوری و لشکری روی حفظ منافع ملی، ایجاد روحیه تفاهم و همدلی مشترک که مبدل به اقدام باالمثل عملیات روانی دشمنان، در دراز مدت گردد از طرف دولت یا کدام نهاد رسمی دیگر به عمل نیامده است.

با توجه به اینکه در پهلوی جنگ مسلحانه عملیات روانی کشور های همسایه بدون وقفه از مردم ما قربانی می گیرد و با گذشت هر روز عمق تأثیرات منفی عملیات روانی این کشور ها به علاوه مردم عوام در ذهن و روان روشنفکران ما تار و ریشه دوانده و دارد منجر به فاجعه می گردد.


کلید واژه : جنگ نرم، ، عملیات روانی، جنگ سخت، تلفات و ...

## مقدمه

درجهان امروز جنگ نرم جزء از فعالیت های سیاسی، نظامی، اقتصادی و اجتماعی کشورهای مختلف است که تحت پوشش سازمان های اطلاعاتی در سطح ملی و بین اللملی دارای کارکرد های گوناگونی است. این نوع جنگ برای تضعیف روحیه مردم و تن دادن آنها به تسلیم و شکست باشد و عقاید و احساسات و تمایلات را نشانه می گیرد. در اعمال جنگ نرم و تبلیغاتی توسط دولت های مختلف اهدافی دنبال می شود که مهم ترین آنها در زمان جنگ حمایت و پشتیبانی از اهداف سیاسی و نظامی و به نتیجه رساندن آنها می باشد.

هدف جنگ نرم علیه کشورهای دیگر، عبارت از: ایجاد تفرقه و هرج و مرج، جستجوی نقاط حساس و تحریک پذیر ساختن آنها و استفاده از تضاد های داخلی جوامع و تلاش در جهت افزایش تضادهای نژادی و ایجاد جو بدبینی و عدم اعتماد به دولت ها ودامن زدن به هر مسئله یی که منجر به برهم زدن وحدت ملی شود می باشد.

تقویت تنفر مذهبی، قومی، سمتی و زبانی میان مردم یک کشور و پشتیبانی حرکتی که مانع وحدت ملی در یک کشور مورد نظر گردد از اهداف مهم جنگ نرم در هنگام صلح است، حمایت و تقویت توان ملت خود در نیل به اهداف سیاسی، اقتصادی، یا حین اجرای مأموریت ها و فعالیت های مخفی نظامی هم از نظر پنهان نیست.

رسانه اطلاع رسانی صوتی، تصویری و چاپی را می توان به عنوان مهمترین وسیله ارتباط سیاسی به شمار آورد. رسانه به عنوان سکو یا تریبون برای عقاید سیاسی وسیله در دست احزاب و سازمان های سیاسی برای بسیج افکار عمومی یا شکل دادن به مرام مسلکی، ابزاری برای پروپاگند در کشمکش بین دولت ها و ناظر بر عملکرد حکومت ها است و از مهم تر وسیله برای آگاه کردن مردم از مسایل مملکتی و اعمال قدرت در جوامع به کار میرود که یگانه وسیله مهم و مؤثر در جنگ نرم دانسته می شود که با آن می توان به اهداف جنگ نرم دست یافت.

## تعریف جنگ نرم

جنگ نرم(Psychological Warfare) عبارت از استفاده طراحی شده از تبلیغات و سایر اقدامات در زمان جنگ یا وضعیت فوق العاده به منظور تأثیر گذاری بر افکار، هیجانات، نگرش ها و رفتار دشمن است، به گونه ای که از تحقق اهداف و مقاصد ملی پشتیبانی شود. و در تعریف دیگر عملیات روانی را این گونه تعریف شده است:

سلسله فعالیت های روانشناسانه ای را شامل میشود که در زمان صلح و جنگ و بحران برای تأثیر گذاشتن بر نگرش و رفتار مخاطبان بی طرف، خود و دشمن طرح ریزی شده و در روند دستیابی به اهداف سیاسی و نظامی مؤثر است(دکترین عملیات روانی ناتو،۲۰۰۲).

جنگ نرم عبارت از مجموعه ای اقدامات کشور برای اثر گذاری ونفوذ برعقاید درجهت اعمال نفوذ بررفتار دولت ها و مردم مقابل آن است که دراهداف مورد نظر واستقامت تعیین شده با استفاده از ابزار و شیوه های غیر نظامی سیاسی و اقتصادی صورت می گیرد و تبلیغات ستون فقرات وهسته اصلی واساسی جنگ نرم را تشکیل میدهد.ونیز عقیده بر آن است که مفهوم اصلی واساسی جنگ نرم عبارت از دست کاری عقاید وباورهای می باشد که از طریق یک یا تعداد از رسانه های ارتباطی هماهنگی،اجرا و عملی میگردد تا حدی که جانب مقابل و هدف مورد نظر را از تبارز هرگونه عکس العمل باز می دارد جنگ نرم در تمام کشورها درحال حاضر ادامه دارد که عمدتاً جنگ نرم کشورهای همسایه را دریک ابعاد وسیع و بسیار بی رحمانه آن در امور داخلی افغانستان که درطول چهار دهه گذشته به طور مستمر و بدون وقفه ادامه دارد که با گوشت و استخوان لمس،احساس و تجربه نموده ایم.

## اهداف جنگ نرم

در یک تقسیم بندی کلی می توان اهداف جنگ نرم را به سه دسته تقسیم کرد.

- اهداف سیاسی: نظر تبلیغات فارسی رسانه ایی فارسی از رسانه های غربی به اهداف ایجاد تفرقه در جوامع اسلامی؛
- اهداف نظامی : نظیر تبلیغات دستگاه عملیات روانی یک واحد نظامی برای سست کردن انگیزه ای نبرد در افراد نیروی مقابل؛
- اهداف سیاسی نظامی: اهدافی است که جنبه های سیاسی و نظامی در هم آمیخته شده است و نمی توان آن را دریک از دو نوع پیشین جای داد، نظیر تبلیغات زمان جنگ یک کشور برای کشور دیگر با هدف اعمال فشار بر تصمیمات دفاعی رهبران. (حسینی،۱۳۸۳: ۷)
- از بین بردن امید های طرف مقابل؛
- بی اعتماد سازی مردم را نسبت به رهبران؛
- ایجاد شگاف،تفرقه و بی باوری مطلق درمیان اقشار مختلف یک جامعه.

## ویژگی های جنگ نرم

با توجه به تعاریف و پیشینه ای که جنگ نرم عرضه شده است لازم است دراین بخش به ویژگی ها و مختصات ذاتی جنگ نرم بپردازیم. ویژگی های جنگ نرم به دلیل پیچیدگی بسیار زیاد از تنوع خاصی برخوردار است. از نظر سپاه پاسداران ایران ویژگی های جنگ نرم ترسیم کننده اهداف جنگ نرم نیز می باشد که به شرح ذیل اند:(اسماعیلی،۱۳۹۱: ۳۸)

الف – جنگ نرم در پی تغییر قالب های ماهوی جامعه و ساختار سیاسی است؛

ب – آرام و تدریجی و زیر سطحی است؛

ج – نماد ساز؛

د – پایدار و با دوام؛

هـ – پرتحرک و جاذبه دار؛

و – هیجان ساز؛

ز – آسیب محور است؛

ح – چند وجهی است؛

ح – تضاد آفرین است؛

ط – تردید آفرین است؛

ی – از ابراز روز استفاده می کند.

## عرصه های جنگ نرم

تحقیقات علمی انجام شده نسبت به جنگ نرم نشان میدهد که محقق در این حصه تحقیقات داشته اند در شناخت و معرفی عرصه های جنگ نرم دچار نوعی سر در گمی شده و به دلیل نبودن منابع کافی، بیشتر محوریت جنگ نرم را در حوزه مسایل سیاسی مورد بررسی قرار داده اند به همین منظور سعی می شود در این بخش به عرصه های مختلف و میدان های متنوعی که جنگ در آن بی وقفه در جریان است اشارات کوتاهی شود.

بر این اساس جنگ نرم در عرصه سیاسی، اقتصادی، فرهنگی و اجتماعی، ارتباطی و علمی تفکیک و مورد بررسی قرار می گیرد.

الف : جنگ نرم در حوزه سیاست

جنگ نرم در حوزه سیاست از پیچیده ترین و مهم ترین عرصه ها محسوب می شود و خوش بختانه حجم کاری زیاد از تحقیقات انجام شده در حوزه جنگ نرم ناظر بر مسایل سیاسی است که دلیل اصلی آن محسوس بودن و قابل دسترس بودن آن است. محتوای این بخش نیز درواقع پاسخی برای این پرسش است که اساساً جنگ نرم در حوزه ی سیاسی چه اهدافی را دنبال می کند؟

عرصه های تهدیدات سیاسی به صورت مستقیم متوجه نوع حکومت و نظام های سیاسی است و ایجاد تغییرات کلی در شاکله حکومت ها هدف اصلی در جنگ نرم محسوب می شود. به عباره ساده تر هدف دشمن در این تقسیم بندی تعویض نظام سیاسی یک کشور یا استحاله تدریجی ساختار موجود است. دربخش های آتی میکانیسم و فرایند دستیابی به این هدف مورد بررسی قرار خواهد گرفت.

برای نیل به این هدف هر نقطه از جهان نیازمند تعریف ویژه ای می باشد. به نظر میرسد دشوار ترین شکل ممکن زمانی است که ساختار سیاسی یک کشور مبتنی بر تعالیم دینی باشد. در این وضعیت بین مردم و دولت رابطه ای عمیق و درونی وجود دارد و مخالفت با دولت و هر اقدامی که در چارچوب بر اندازی تقسیم بندی شود با مقاومت و مقابله مستقیم مردم مواجه خواهد شد. در این موارد روش های تکتیکی از پیچیدگی های خاصی بر خوردار است و شناخت آن برای اقشار گوناگون جامعه و حتا بسیاری از نخبگان هم امری دشوار محسوب می شود.

برنامه زمان بندی شده و مرحله بندی شده از بدیهیات این جنگ به شمار می رود در برخی از کشورها شاید سال ها به طول بینجامد ولی از آن جایی که طراحان این جنگ چاره ای جز این ندارند صبر پیشه کرده و قدم به قدم مبارزه را ادامه میدهند. ژوزف نای مقبولیت سیاست خارجی را از منابع قدرت نرم بر می شمارد.(نای،۱۳۸۷: ٤٦)

ب – جنگ نرم در حوزه‌ی اقتصاد

جنگ نرم در حوزه‌ی اقتصاد از دیگر موضوعاتی است که تا کنون کمتر مورد توجه قرار گرفته است و این در حالی است که آسیب های ناشی از جنگ نرم دشمن در حوزه ی اقتصاد در بلند مدت ساختار اقتصادی یک کشور را بیمار و نا کارا می کند به گونه ای که جبران خسارت های وارده از آسیب های فکری به مراتب دشوار خواهد بود. ابعاد جنگ نرم در حوزه اقتصاد را در سه زمینه می توان دسته بندی کرد: ۱. ارائه الگو مصرف مطابق با سیاست های مورد نظر دنیای سرمایه داری؛ ۲. ایجاد حسی بدبینی نسبت به فعالیت های دولت در حوزه ی اقتصاد؛ ۳. ایجاد حس بدبینی و حقارت نسبت به تولیدات داخلی.

از جمله مواردی که در جنگ نرم در حوزه اقتصاد در سال های اخیر شاهد بوده ایم ارائه ی الگوی مصرف مطابق با سیاست های مورد نظر دنیای سرمایه داری است، بر پایه ترویج هر چه بیشتر مصرف بنا نهاده شده است و این در حالی است که مصرف بی رویه و بدون توجه به نیاز واقعی مغایر اصول و مبانی دینی است که در آیاتی از قرآن و احادیث متعدد این موضوع از مصادیق گناه هان کبیره شمرده شده است.

از دیگر موارد جنگ نرم در حوزه اقتصادی ایجاد حس بدبینی نسبت به فعالیت های دولت در حوزه اقتصاد و ترویج نافرمانی و هم راهی نکردن مردم با سیاست های اقتصادی دولت است. ایجاد جو بدبینی و سوء ظن باعث می شود دولت در رسیدن به اهداف خود با مشکلات عدیده رو به رو شود. در این بین برخی از تصمیم های نادرست و ناتوانی دولت در توجیه افکار عمومی باعث تشدید فضاسازی دشمن و مضاعف کردن تأثیرات عملیات روانی می گردد.

آخرین موردی که در بحث جنگ نرم دشمن در حوزه ی اقتصاد ضروری به نظر می رسد ایجاد حس خود کوچک بینی و حقارت نسبت به تولیدات داخلی است. این پدیده باعث می گردد افراد موقع خرید کالا و مایحتاج روزمره تمایل خود را نسبت به خرید کالا های داخلی از دست داده و بی اختیار در پی خرید اجناس خارجی باشند. شاید تصویر پیامدهای این تفکر چندان دشوار نباشد ولی به طور خلاصه اشاره می کنیم که استیلای این تفکر باعث نابودی کارخانه های داخلی می گردد چرا که نبود اقبال عمومی و کم شدن باعث انباشته شدن کالا ها در انبارها و و توقف چرخه ی تولید می شود. رکود ناشی از توقف تولید موجب تعطیلی کار خانه و رشد نرخ بی کاری و هزاران پیامد های دیگر می گردد و پیوند این عوارض با آثار جنگ نرم در حوزه های دیگر می تواند تهدیدات بزرگی را در مقابل ساختار سیاسی کشور ایجاد نماید.

ج – جنگ نرم در حوزه فرهنگی

فرهنگ از جمله واژه هایی است که با وجود کاربرد بسیار فروان اتفاق نظر چندانی در مورد آن وجود ندارد و پژوهشگران و نظریه پردازان تعریف های متفاوتی از آن ارائه کرده اند ولی تقریباً همه معناهای مختلف فرهنگ از واژه ی لاتین(Cultivate) ریشه می گیرند که به مفهوم پرورش عمل آوری و رشد می باشد. (گل محمدی،۱۳۸۱: ٤٦)

تهدیدات فرهنگی وسیع ترین، مؤثرترین، پیچیده ترین و شاید بتوان گفت خطرناک ترین نوع تهدید محسوب می شود. در این تهدید، سیاست گذاران نظام سلطه ذهن مخاطبین را مورد هجوم و توجه قرار داده، برای تسخیر اذهان و قلوب آن ها در راستای منافع خود اقدامات گسترده و مختلفی را اجرا می کنند. تلاش نظام سلطه برای تأثیر گذاری بر افکار، ایمان، اندیشه و اعتقادات مخاطبین است. با نگاهی به گذشته ی نه چندان دور و تطبیق آن با شرایط جدید ما شاهد فرایند طولانی از رویکردهای مختلف و جدید در عرصه های بین المللی و منطقه ای هستیم.

همان طور که می دانیم هر جامعه ای فرهنگ، تمدن و ارزش های مختص به خود را دارد که بیانگر هویت و تاریخ مردم آن جامعه و کشور است و بدون تردید که نقاط قوت و ضعف خود را دارا می باشد. کشور های که جنگ نرم را برای بدست آوردن اهداف خود در یک کشوری راه اندازی می نماید از نقاط ضعف فرهنگ و تمدن آن کشور جهت موفقیت جنگ نرم و بدست آوردن اهداف خود مستفید می شود.

د – جنگ نرم در حوزه ارتباطات

فضای به وجود آمده از تهدیدات ارتباطی به عصر حاضر، یعنی عصر ارتباطات یا اطلاعات و همچنین انفجار اطلاعات مربوط است. در این محیط، مخاطب با هزاران طول و موج رادیویی، امواج دیجیتالی، فیبرنوری، سیگنال های مختلف و متفاوت، فن آوری ها، جامعه شبکه ای، چند رسانه ها، تلفن های همراه و نسل اول و دوم تلفن های سلولی اینترنیت و امواج ماهواره ای دیجیتالی، فرستنده های میناتوری، ماکرویوهای با توان بالا و ابزار های نوین در عملیات روانی همچون اشعه های الکترومقناطیس روانی الکترونی صوتی، لیزری، خواب رادیویی، امواج کوتاه الکتریکی تنش ساز و فن آوری های نوین در عملیات روانی مانند هواپیماهای بدون سرنشین، سلاح های اتومی و... تهدیدات مواجه است.

هـ – جنگ نرم در حوزه‌ی علم و اندیشه

جنگ نرم در حوزه‌ی علم و دانش به دلیل زمینه سازی بروز دیگر تهدیدات از اهمیت بالایی بر خور دار است. نظام سلطه با تولید نظریه های مادی گرایانه، انسان محور و الحادی در صدد انحراف افکار و اعتقادات مخاطب برآمده و زمینه پذیرش سلطه سیاسی، فرهنگی، اقتصادی و اجتماعی را فراهم می آورد به عبارت ساده تر وقتی به منابع دسترسی در رشته های علوم انسانی توجه کنید متوجه می شوید که اکثر قریب به اتفاق این منابع ترجمه کتبی است که نویسندگان آنها به لحاظ مبنای فکری، کمترین سنخیتی با تعالیم اسلامی ندارد.

و – جنگ نرم در حوزه‌ی مذهب

جنگ نرم در حوزه‌ی مذهب و تلاش برای ایجاد تردید در باورها و اعتقادات مردم از موضوعاتی است که به دلیل علنی بودن فعالیت های آشکاری که انجام می شود از مدت ها قبل مورد توجه قرار گرفته است و به همین منظور نیز تدابیر اتخاذ شده است ولی آن چه در سال‌های اخیر شاهد آن هستیم حاکی از هجومی عظیم و حساب شده است که از مجاری مختلف با استفاده از فن آوری های نوین ارتباطی و به خصوص فضای مجازی در حال انجام است.

## نتیجه گیری

جنگ نرم، امروز مؤثرترین، کارآمد ترین و کم هزینه ترین و در عین حال خطرناک ترین و پیچیده ترین نوع جنگ علیه امنیت ملی یک کشور است. چون با کمترین هزینه می توان اهداف خویش را بدست آورد. جنگ نرم به روحیه افراد یک مملکت به عنوان یکی از عوامل قدرت ملی خدشه وارد می کند. عزم و اراده ملت را از بین می برد، مقاومت و دفاع از آرمان و سیاست های نظام را تضعیف می کند، فروپاشی روانی یک ملت می تواند مقدمه برای فروپاشی سیاسی، امنیتی، اقتصادی، اجتماعی، فرهنگی و ساختار های آن باشد. قدرت نرم شیوه غیر مستقیم رسیدن به نتایج مطلوب قدرت در ابعاد مختلف است به نتایج مطلوب بدون تهدید یا پاداش ملموس می باشد. این شیوه غیر مستقیم رسیدن به نتایج مطلوب قدرت در ابعاد مختلف است. بر این پایه یک کشور می تواند به مقاصد مورد نظر خود در سیاست جهانی در موارد فرهنگی، اقتصادی و... نایل آید چون کشورهای دیگر، ارزش های آن را می پذیرند، از آن تبعیت می کنند، تحت تأثیر پیشرفت و آزاد اندیشی آن قرار می گیرند و در نتیجه خواهان پیروی از آن می شوند. در این مفهوم آنچه مهم تلقی میشود تنظیم دستورالعمل است که دیگران را جذب کند. مبنای قدرت سخت یا جنگ سخت براجبار ومبنای قدرت نرم براقناع است جنگ نرم برعلاوه اهداف جنگ سخت که فقط ویران اماکن عمومی با نظامی و کشته و مجروح شدن جمع آوری از مردم را بدنبال دارد بلکه انهدام تمامی نهاد ها زیربنایی وارزشهای مهم دردستور کار جنگ نرم قرار دارند.

از جمله عملیات پیچیده و ساز مان یافته و ضمناً از جمله ضرورتمندی های مبرم نابودی اهداف در شرایط موجود است، اثرات آن در حوزه‌های مختلف به مراتب مخرب تر از بم هسته یی می باشد. به همین خاطراست که جنگ نرم به مراتب از جنگ مسلحانه تأثیر گذار تراست. اما نباید فراموش کرد که جنگ نرم کار ساده و آسانی نخواهد بود و مهمتر از همه که این جنگ متکی و مستلزم یک سلسله شرایط، و موضوعات جانبی، همیاری و عواملی می باشد تا بتواند از آن در برابر دشمن و جانب مقابل استفاده مطلوب نمود. درپهلوی سایر مزایا، جنگ نرم درحال حاضر بخشی از کشور داری است که بنا بر همین خصوصیت در کنار سایر ابزارهای قدرت ملی، جنگ نرم جای ویژه ای را به خود اختصاص داده است. هدف اساسی جنگ نرم تسلط بردیگران است؛اما این تسلط، به صورت پنهانی و غیر ملموس می باشد.

## منابع و مأخذ


۱. اسماعیلی, علی محمد. (۱۳۹۲). جنگ نرم در همین نزدیکی. تهران: انتشارات ساقی.

۲. آشنا, حسام الدین. (۱۳۸۳). فرهنگ, ارتباطات و سیاست خارجی, ارائه مدلی برای دیپلماسی عمومی. تهران: فصلنامه ی پژوهشی دانشگاه امام صادق(ع) ش ۲۱.

۳. باقری, علی. (۱۳۸۷). جنگ و استراتیژی. تهران: انتشارات ساولان.

٤. بهلولی, ناصر. (۱۳۹۲). عملیات روانی. تهران: دانشگاه افسری امام علی معاونیت پژوهشی.

۵. حسینی, حسین. (۱۳۸۳). اصول و مبادی عملیات روانی. تهران: دانشگاه امام حسین(ع).

٦. گل محمدی, احمد. (۱۳۸۱). جهانی شدن فرهنگ. تهران: نشر نی.

۷. مرادی, حجت الله. (۱۳۹۰). عملیات روانی رژیم صهیونیستی. تهران: روایت فتح.

۸. ناصریان, شیر محمد. (۱۳۹۲). جنگ نرم و نقش رسانه ها. کابل: انتشارات کاروان.

۹. نای, ژوزف. (۱۳۸۷). قدرت نرم. (س. روحانی, & م. ذوالفقاری, مترجم) تهران: دانشگاه امام صادق(ع) و پژوهشکده مطالعات و تحقیقات بسیج.

۱۰. وردی نژاد, فریدون. (۱۳۸۹). عملیات روانی. تهران: انتشارات ارجمند.

۱۱. یحیی, محمد الیاس. (۱۳۸٤). جنگ فکری. (س. تقدسی, مترجم) تهران: نشر اسپندهنر.

## د علم په مرسته پر ټولې نړۍ ...

ځخه مو غوښــتنه ده، د خپل هېواد د شهيدانو، مبارزينو او قهرمانانو تاريخونــه وليکــئ او په نړيواله کچــه يې نورو تــه وروپېژنئ؛ ځکه مجاهدينو په ســختو حالاتو کې د الله تعالی په نصرت سره دا هېواد ازاد کړ.
عاليقدر اميرالمؤمنيــن حفظه الله تعالی ورانــدې ځوانانو ته ويلي چې اوس ستاســو نوبت دی، د خپلې پوهې پر مټ افغانســتان په نړۍ کې سيال کړئ.
اميرالمؤمنيــن حفظــه الله وويل: « او دومــره زحمت وګالئ، چې بهرنيان دلته راشــي، ستاســو ځخه زده کړه وکړي او د خپل علم په مرسته پر نړۍ حکمراني وکړئ.»
د يادونې وړ ده چــې اميرالمؤمنين حفظه اللــه تعالی تر دې دمخه د هېــواد شــمالي ولايتونو ته په ســفرونو کــې د يــادو ولايتونو د حکومتولــۍ چارې له نږدې ارزولــې وې او پراخ ليده کاته يې کړي وو.

## له بېلابېلو قول اردوګانو ...

مرســتيال يادو فارغانو ته په فراغتغونــډه کې ويلي: « خپل اعداد ته متوجې شــئ، له دوښمن ســره د مقابلې په پار چمتووالی ونيسئ او پرورانډې يې لــه بېلابېلو تکتيکونو کار واخلئ. «
ياده دې شــي، چــې په دغو زده‌کړو کې فارغو شــويو کســانو ته د توپچــې، انجنيــري، مخابــرې او په ګڼ شــمېر نــورو برخو کې د مســلکي او مجربو استادانو درې مياشتنۍ زده‌کړې ورکړې دي.
دا په داسې حال کې ده، چې ياد وزارت نن تر دې وړاندې د عبدالله بن مســعود رضي‌الله عنــه د جګړه‌ييزو ګډو زده‌کړو لــه قوماندانۍ ځخــه د ۲۰۲ تنه ځوانــو منســوبينو له فراغت هم خبــر ورکړی د ی.

## د سلواغې ۲۶مــه؛ د شــوروي اتحـاد...

ســره خوړل، دلې دلې شول، يو بل يې ووژل او بالاخره يې شوريان دې اشر کې شــريک کړل. کمونېستانو د شــورويانو له يرغل دمخه لــه ولس ســره په اخ و ډب اختــه وو. د جومات، مدرســې، خان، ملا، ږيرې او د هرې اســلامي، افغاني او پښــتنې عنعنې دوښــمنو ټول زور وازمايه. افغــان کادرونه پر زندان، اعدام او تجريد محکوم شول. کمونېستانو د شــوري يرغلګرو په ملتيا هېواد لوټې لوټې کړ، درمندونه لولپه شــول، پل پل ځمکه په ماينو وپوښــل شوه، شوبلې د شــولو کروندو ته ورګډې شــوې. له ســمې او غره پــه يوه غږ دله دله ځوانان د هېواد سرښــندنې ته وړاندې شول، تش لاسی ملت له زغروالو ټانګونو ســره په جنګ شو، اســلام برى ومومند، سوسيالېزم مغلوب شــو او داســې مغلوب چې د ټولې نړۍ ســترګې پرې يخې شوې.
قطبي خرســان له آمو تېر شــول، خو د هېواد ټپيونه لا ژور شــول، شــاوخوا يــو ميليــون افغانان شــهيدان شــول، ميليونونــو نورو د مهاجرت لاره ونيوه، بې شــمېره معلول شــول، او د افغانانو د توري تر ســيوري لاندې د منځنۍ اســيا مســلمانو هېوادونو هم د ازادۍ ساه واخېســته. لســګونه زره شــوروي عســکر هلاک، بې شمېره وســلې او زغره وال ټانګونه يــې اوبه او ميلياردونــه پانګه يې نابود شوه.
شــورويان ووتل، لاسپوځې يې نېســت؛ خو ګوتې له ماشې لرې نه شــوې. دا ځل د ټوپکو تــورې خولې د يو بل په خوا کږې شــوې، ملت او وطن بيا ټپي شــو، زخمونه ناسور شول، آن په زرو فرسنګونو کې رڼا نه ښــکارېده، وطن غريــو نيولی و، د مهربان لاس په تمه و؛ د تورو شــپو سينه وڅېرل شــوه، په کندهار کې سپېدې وچاودې، د مدرســو طالبانو کتابونه وتړل، پاټکونه ټول شــول، وطن خوږه ســاه واخيســته، هېواد ازاد شــو، د خلکو زړونه ټکور او د نجات پرښــتو اوروســکروټه وطن په خپلو سپينو وزرونو کې راونغښت.

**خالد افغان**



## امارت اسلامی به معنی واقعی ...

در روزهای نخستین فتح عنوان کرده است.
بــه باور او، پروژه نوی خیرخواه مارکیت نمونه روشــن اعتماد ســکتور خصوصی بــالای برنامه‌های اقتصادمحــور امارت اسلامی است. گفتنی‌است که مارکیت متذکره با سرمایه‌گذاری ۳۴ میلیون دالر در گســتره بیش از ۹ هــزار و ۳۰۰ متر مربع زمین در ۹ منزل ساخته شده است.

## استرداد بیش از ۱۶ هزار جریب ...

اســترداد ۸ هــزار و ۹۴۰ جریــب زمین در صدر فهرســت ولایت‌هــای یادشــده قرار دارد. عــلاوه بر ایــن، هیئت‌های تخنیکی جلوگیری از غصــب، ۴۶۸ هزار ۵۹۸ جریب را در ۲۵ ولایت تثبیت کرده‌اند. در خبرنامه گفته شده که هیئت‌های متذکــره بیش از یک میلیون و ۳ هزار و ۳۵ جریب زمین را در ۳۲ ولایت تحت بررسی قرار داده‌اند.
این در حالی است که روند بررسی، تثبیت و استرداد زمین‌های غصب شده امارتی در تمامی ولایت‌های کشور جریان دارد.

## توزیع بیش از ۲۳ میلیون افغانی کمک ...

اجتماعی افغانستان (ASIO) در اختیار خانواده‌های نیازمند قرار داده شده است.
برای هــر خانواده علاوه بر توزیع ۲ هــزار و ۹۰۰ افغانی پول نقــد، ۱.۵ کیلوگرام غــذای مقوی مخصوص کــودکان و ۳ کیلوگرام سوپرسریال نیز دریافت می‌کنند.
هدف از توزیع این کمک‌ها را ریاست احیاء و انکشاف دهات ولایت ســمنگان کاهش مشــکلات اقتصــادی خانواده‌های نیازمند بیان کرده است.

## شاوخوا ۲۰۰ ځوانو منسوبينو توپچي ...

ځواکونه د پوځ د ملا د تير حيثيت لري، هغه اردو چې مسلکي او پياوړي توپچــي ځواکونه لري د جګړې د ډګر ګټونکي بلل کېږي؛ هڅــه وکړئ چې په ياده برخه کې د عصري تکنالوژۍ او وسايلو کارول هم زده کړئ.»
ورته وخت کې نويو فارغو شويو منسوبينو ډاډ ورکړې چې د زده کــړو مهارتونو پر مټ به د هېواد لــه خپلواکۍ، ځمکنۍ بشپړتيا او اسلامي ارزښتونو ځخه دفاع کوي.

## قرارداد معدن سرب و جست اسپ میدان ...

اســت: قرار داد این معدن برای مدت ۵ سال مشروط براینکه مطابق اصول، طرزالعمل معادن و تعهدات شان کار و فعالیت نمایند عقد میگردد که بعد از تکمیل میعاد معینه برای بار دوم تمدید خواهد شد.
آقای بدری افزوده که پروســس صد درصدی سرب و جست استخراج‌شده در معدن یادشده در داخل کشور صورت خواهد گرفت. این در حالی است که روز گذشته نیز قرارداد اکتشاف، اســتخراج و پروسس معدن سنگ مرمر دره‌نور ولایت کندهار نیز میان وزارت معادن و پترولیم با یک شــرکت ترکی به ارزش ۶.۲ میلیون دالر به امضا رسید.

## د غزه والو د جلا وطنۍ غوښتنه ...

نه د څو قطبي کېدو په لــور ګړندي ګامونه اخلي. همدا وجه ده چې نن ســبا ډېری کمزوري هېوادونه هم د دغو زورواکو او بدماشــانو خولو پورې خاندي او زياتره غورې لابې يې تشــې هوايي ډوزې بولي. د افســوس خبره داده چې همدې مناسب وضعيت کې هم په عامه توګه اســلامي نړۍ او بيا خصوصاً د فلسطين ګاونډي مسلمان او عرب هېوادونه د فلسطين په اړه پر انتهايي ډېر کمزوري دريځ ولاړ او د غزې مظلومو او محصورو مســلمانانو پر وړاندې د تاريخي بې ننګۍ مرتکب شوي دي.
ځکه ښکاره ده چې که يادو هېوادونو د يرغلګرو صهيونيستانو او د هغــوی د يارانو پر وړاندې څه ناڅــه ترخه ژبه کارولې او لاس ورغځولي وي، اوس به هيچا هم د غزه والو د جلا وطنۍ خبره نه وه ياده کړې. همدا وجه ده چې ټول افغان ملت د غزې د خلکو پر دغې بې کسۍ خورا زيات غمجن او فرد، فرد په دې ارمــان دي چې که مخکې يې پراته خنډونه او بنديزونه موجود نــه وي، حتماً به يې صهيونيســتي يرغلګرو ته هم خپله لار او ګودر ورښودلی وي. خو بيا هم ډېر افسوس چې مسلمان امت لا هــم خپلو کې دومره همغږي نه لــري چې يو ظالم ته په يوه خوله او ښــه جرأت سره غاښ ماتوونکی ځواب ورکړي. رښتيا ده چې اختــلاف او تفرقه د بدبختۍ، ذلت او کمزورۍ اصلي سرچينه ده.

## د ټولګټو چارو وزارت د وروستيو...

د لومړۍ او دويمې طبقې اسفالټ اچول شوی او د پاتې برخې کار به يې په راتلونکي کال کې بشپړ شي.
دغــه راز د کندهار - ارزګان عمومي ســړک چې ۱۰۸ کيلومتره اوږدوالی لري، د ترينکوت - دهراود ۵۰ کيلومتره سړک، د دشت ارچي - کندز ۲۰ کيلومتره ســړک او د کندهار- سپين بولدک د ۳۹.۶ کيلومتره سړک د رغونې چارې هم جريان لري.
د ټولګټو چارو وزارت مرســتيال د خپلو کړنو په راپور کې دا هم ويلــي، چې د اميرالمؤمنين د فرمان پر بنســټ د لارو په اوږدو کې د ۱۴ جوماتونو جوړولو له ډلې ۶ جوماتونه د کابل- هرات پر مســير او د ۸ جوماتونو قرارداد يــې د کندهار- هرات پر لار له رغنيزو شــرکتونو سره لاســليک کړی، چې ودانيز کارونه يې پيل شــوي دي. د دغه وزارت مسؤلينو څرګنده کړه، چې د ځينو ولايتونو تر منځ د لارې خطر او ترافيکي پېښــو ته په کتو وزارت غوره وګڼله چې دويم لاين سړکونه جوړ کړي.
پر همدې اساس د کابل - غزني لويې لارې دويم لاين شاوخوا ۴۹ کيلو متره سړک د رغونې کار په دوو لاټونو کې له خصوصي سکټور ســره په تخميني ډول د څه باندې ۳ ميلیارده افغانيو په ارزښــت قرار داد کړی، چې دا مهال يــې د دوارو برخو کار پيل کړی، چې بوديجه يې د ټول پلازې له لارې تمويلېږي.
دغه راز د کابل - جلال آباد لويې لارې د دويم لاين سړک، چې شاوخوا ۱۴۷ کيلومتره اوږدوالی لري؛ د ۶۵ کيلومتره سړک ۳۳ کيلومتره د ننګرهــار ولايت له لوري او ۳۲ کيلومتره يې د کابل ولايت له لوري له وړاندې په کانکريټي ډول رغول شــوی و او پاتې نور يې په درېيو بېلابېلو برخو وېشــل شوی، چې لومړۍ برخه يې ۲۲ کيلومتره اوږدوالی لري او دا مهال يې د اساســي رغونې کار جريان لري او د دې پروژې لګښت هم د ټولپلازا له محصول ځخه ورکول کېږي.
همدا شــان د وزارت له لوري په بېلابېلو ولايتونو کې د خلکو د هوساينې او تګ راتګ لپاره ځينې پلونه هم جوړ شوي او يا يې د جوړېدو کارونه جريان لري.
مولــوي عبدالکريم فاتح دا هم ويلي، چــې د ټولګټو وزارت د وسپنيزې کرښې معينيت او ازبيکستان د ريل پټلۍ ادارې ترمنځ د حيرتان-مزارشــريف مســير د ترميماتي چارو تړون د شپږو مياشــتو لپاره وغځېد او تر دا مهاله يــې د بيارغونې چارې ۸۰ سلنه مخکې تللې دي.
بل لور ته د خواف-هرات وســپنې پټلــۍ د څلورمې قطعې د لومړۍ برخې رغنيزې چارې روانې دي او ۸۰ سلنه پرمختګ په کې راغلی دی. ياده وسپنيزه کرښه ټولټال ۴۳ کيلومتره اوږدوالی لري، چې د هرات ولايت په غوريان او زنده جان ولســواليو کې تېرېږي. د راپور له مخې، په تېرو لسو مياشتو کې د وسپنې پټلۍ د څلورو مسيرونو (حيرتان، آقينې، تورغونډۍ او خواف-هرات له لارې شاوخوا (۳.۵) ميليون متريک ټنه انتقالات شوي دي.
د يادونې وړ ده، چې په راتلونکي کال کې د ځينو سړکونو، پلونو، ريل پټليو او نورو نيمګړو پاتې رغنيزو پروژو طرحې او ډيزاينونه بشپړ شوي، چې د کال په نوي کېدو سره به يې کار پيل شي.

**منيب**

## امضای قرارداد پروژه مرمر دره نور ...

دره نــور ولایــت کندهار با شــرکت ترکیه امی اغلــو به امضا می رسد.
سرپرســت وزارت معادن و پترولم کشــور در ادامه سخنانش تصریــح کرد:» شــرکت یاد شــده در بخش های اکتشــاف، اســتخراج و پروسس به ارزش ۶.۲ میلیون دالر برای مدت ۳۰ ســال سرمایه گذاری خواهد کرد که به اساس تعهد شرکت و با درنظرداشــت معیار های جهانی تطبیق خواهد شد، با امضای این قرارداد برای ۱۰۰ تن جوانان فرصت کاری برابر و خدمات اجتماعــی برای مردم محل عرضه خواهد شــد و تأکید ورزید که این وزارت همواره تلاش کرده است تا کشور به خود کفایی رسیده و برای شهروندان کشور فرصت کاری فراهم سازد.
سپس موســی امی اوغلو معاون شرکت اســتخراج و پروسس معادن امی اغلو پلان و اهداف آن شرکت را تشریح نموده اظهار داشت:» شــرکت امی اغلو یک شــرکت خانوادگی بوده که از سال ۱۹۸۶ تقریباً بالاتر از ۵۰ سال است که در بخش سکتور اســتخراج و پروسس مرمر در سطح ترکیه و جهان فعالیت دارد و همچنان در بخش های مختلف از جمله استخراج و پروسس معدن به خصوص مرمر، استخراج و پروسس نهایی نفت خام و گاز و در بخش تولید پنل های برقی ســولری در ترکیه و سطح جهان فعالیت دارد.
معاون شرکت امی اغلو با بیان برادری دولت جمهوری ترکیه و امارت اسلامی افغانســتان و مردم آن گفت:» وعده ما اینست که ســنگ مرمر افغانســتان را بعد از تولید و پروسس در سطح جهان و بین الملل معرفی کنیم و مشــتری خاص خود را داشته باشد و اظهار امیدواری کرد که این قرارداد یک کار خیر به نفع دولت امارت اسلامی افغانســتان و دولت ترکیه و مردم هر دو کشور باشد.
این درحالیست که امارت اســلامی پس از فتح و پیروزی الی اکنون منابع طبعی کشــور را در محراق توجه خویش قرار داده، با وجود وضع محدودیت های جهانی و عدم بودجه انکشافی، اما با امکانات دست داشته پیشرفت های چشمگیری و فعالیت های مزیدی را انجام داده است.

**قیس قادری**

# Shariat
Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Thursday 13 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 682


**مولوی عبدالسلام حنفی:**
# امارت اسلامی به معنی واقعی در تلاش رشد اقتصاد و تجارت در کشور است



مولوی عبدالسلام حنفی، معاون رئیس‌الوزرا می‌گوید، امارت اسلامی به معنی واقعی در تلاش رشد اقتصاد، تجارت و سکتور خصوصی در کشور است.

ملا حمدالله فطرت، معاون سخنگوی امارت اسلامی این مطلب را دیروز با نشر خبرنامه‌ای از آقای حنفی بیان کرده است.

بربنیاد خبرنامه، معاون اداری رئیس‌الوزرا در مراسم افتتاح مرکز تجارتی «نوی خیرخواه» گشایش این مرکز را نمونه واضح از این تلاش‌ها خوانده است.

آقای حنفی، پروژه یادشده را اولین و بزرگ‌ترین پروژه مشارکت عامه و خصوصی آن هم ... ص۷

**د ملي دفاع وزارت:**
## له بېلابېلو قول اردوګانو ۱۰۵ تنه استادان فارغ شول

د عبدالله بن مسعود رضي‌الله عنه د جګړه‌ییزو ګډو زده‌کړو د قوماندانۍ له مسلکي زده‌کړو څخه د بېلابېلو قول‌اردوګانو له تعلیمي مرکزونو ۱۰۵ تنه استادان فارغ شول. د ملي دفاع وزارت په خپله ایکس پاڼه لیکلي، چې د تعلیماتو او پرسونل ... ۷مخ

## ناروې له اقلیمي بدلونونو سره د مبارزې په برخه کې د همکارۍ ژمنه کړې

د چاپېریال ساتنې ملي اداري رییس مولوي مطیع‌الحق خالص د ناروې له شارژدافیر پیرالبرت الساس سره کتلي دي. یادې اداري ویلي، په دې غونډه کې دواړو لوروو د اقلیم د بدلون پر ضد د اغېزمنو پروژو د تطبیق په تراو خبرې کړې دي.

په یاده غونډه کې ښاغلي خالص د ناروې له شارژدافیر غوښتي، چې د خپل نفوذ له لارې دې د نړیوالو چاپېریالي بنسټونو سره په همغږۍ د افغانستان د اقلیمي پروژو د تصویب په پار د تمویل کوونکو ملاتړ ترلاسه شي. د ناروې شارژدافیر د چاپېریال ساتنې ملي اداري هڅې ستایلې دي او ژمنه يې کړې، چې د اقلیمي بدلونونو سره د مبارزې په برخه کې به همکاري وکړي. یاده دې شي، چې په دې غونډه کې دواړو لوریو د چاپېریال ساتنې ملي اداري او د ناروې سفارت ترمنځ د اړیکو په پراختیا او ګډو همغږیو هم ټینګار شوی دی.



## توزیع بیش از ۲۳ میلیون افغانی کمک نقدی برای بیش از ۸ هزار خانواده در سمنگان



مقام‌های محلی ولایت سمنگان می‌گویند، ۲۳ میلیون و ۶۷۲ هزار و ۷۰۰ افغانی را به‌گونه کمک نقدی برای هزاران خانواده در این ولایت توزیع کرده‌اند.

بربنیاد نامه خبری ریاست احیاء و انکشاف دهات ولایتسمنگان، این کمک‌ها برای ۸ هزار و ۱۶۳ خانواده نیازمند در این ولایت توزیع شده است.

کمک‌های یادشده از سوی برنامه جهانی غذا (WFP) فراهم و توسط موسسه تقویت ... ص۷

## استرداد بیش از ۱۶ هزار جریب زمین دولتی در ۴ ولایت

هیئت‌های تخنیکی جلوگیری از غصب زمین در یک ماه گذشته ۱۶ هزار و ۵۷۸ جریب زمین امارتی را در چهار ولایت کشور استرداد کرده‌اند.

کمیسیون جلوگیری از غصب زمین‌های امارتی دیروز (چهارشنبه، ۲۴ دلو) با نشر خبرنامه‌ای از استرداد این مقدار زمین خبر داده است.

بربنیاد خبرنامه، زمین‌های یادشده پس از بررسی و تثبیت در ولایت‌های نیمروز، ارزگان، کندز و غور از نزد غاصبین استرداد شده است. به گفته کمیسیون جلوگیری از غصب زمین، غور با ... ص۷



## خوست کې د اورلګېدنې مخه نیول شوې



د خوست امنیه قوماندانۍ وایي، چې په ټلوېزیون غونډۍ کې د اورلګېدنې مخه نیول شوې ده. د یادې قوماندانۍ ویاند طاهر احرا وایي، چې دغه اورلګېدنه د ماشومانو له لوري رامنځته شوې وه، چې د اور وژنې ټیم (اطفایي) مسئولینو او ولسي خلکو له لوري مهار شوې ده. د د یادونې وړده، چې د یادې قوماندانۍ اړوند اطفایي مسئولینو تر دې وړاندې هم د پراخو اورلګېدنو مخنیوی کړی دی.

## میدان وردګو کې د ښوونیزو ودانیو چارې تر سره شوې

د میدان وردګو د پوهنې ریاست وایي، چې د روان کال په لړ کې د یونیسف مؤسسې په مالي ملاتړ د ۴۳ میلیونه ۳۳۳ زره او ۸۳۴،۷۱ افغانیو په ارزښت ودانیزې چارې ترسره شوې دي. یاد ریاست وایي، چې دغه چارې د دې ولایت د پوهنې ریاست اړوند د ۷ ولسوالیو په ۷ ښوونځیو کې زده‌کوونکو ته د هوسا او مناسب چاپېریال رامنځته کولو په موخه ترسره او کټې اخېستو ته سپارل شوې دي.

د وردګو ولایت د پوهنې ریاست د خبرپاڼې له مخې، په دې ودانیزو چارو کې احاطوي دیوالونه، د لمریزې برېښنا سیستم، د پاکو اوبو څاګانې، عصري سیستم تشنابونه، سیفټیک څاګانې او استنادي دیوالونه هم شامل دي. یاده دې شي، چې له دې سره به په دغو ښوونځیو کې د زده‌کوونکو تر ډېره شته ستونزې هوارې شي.






## د اروپا په تکل وتي پاکستاني اتباع د سمندر خوراک شول

له بې روزګارۍ اروپاته تلونکي ۱۶ پاکستانیو د کښتۍ په ډوبېدو کې خپل ژوند له لاسه ورکړی دی. د پاکستان د بهرنیو چارو وزارت خبر ورکړی، چې لیبیا سره نږدې په سمندر کې د کډوالو کښتۍ د چپه کېدو په پېښه کې ۱۶ پاکستاني اتباعو خپل ژوند له لاسه ورکړی دی. یاد وزارت وایي، چې په دې پېښه کې ۳۳ پاکستاني اتباع ژوندي ژغورل شوي چې د لیبیا یو روغتون ته د درملنې په پار لېږدول شوي. ویل‌کېږي، چې اکثریت ځوانانو له پاکستان څخه د بې روزګارۍ له امله اروپايي هېوادونو ته مخه کړې ده.

## اردن با اخراج فلسطینیان از غزه مخالفت کرد



عبدالله دوم، پادشاه اردن در سفر به واشنگتن با دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا در قصر سفید دیدار کرده است. در این دیدار عبدالله دوم با طرح دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا مبنی‌بر اخراج فلسطینیان از سرزمین‌های‌شان و جابجایی آنان در کشورهای دیگر، مخالفت کرده است. پادشاه اردن تأکید کرده که کشورهای جهان عرب با طرح بدیل جابجایی فلسطینیان به واشنگتن سفر خواهند کرد. در همین حال، دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا بار دیگر بر طرح جابجایی فلسطینیان در یکی از کشورهای همسایه فلسطین تأکید کرده است. گفتنی است که این طرح با واکنش شدید کشورهای عربی تاکنون روبه‌رو شده است.

## د ټېسلا شرکت ونډو کې کموالی راغلی

د ټېسلا شرکت په نړیوالو بازارونو کې د ونډو په بازار کې ۶ سلنه کموالی راغلی دی. د راپورونو له مخې دغه کموالی هغه وخت لیدل شوی چې یو چینایي شرکت د ډیپ سیک سربېره د ټکنالوژۍ برخه کې د پراخو کارونو د تطبیق اعلان وکړ. دغه شرکت ویلي دي چې (آټو پایلیټ) ته ورته سیستم په خپلو ټولو شرکت سهم په دوامداره توګه راټیټ شوی دی او د دې شرکت د بازار ارزښت کم شوی دی.

یاده دې شي چې په چین کې د ډیپ سیک(ژورغوښت) په نوم د یوه چټ بوټ په راوتو سره د امریکا ټکنالوژیک شرکتونه زیانمن شوي دي.

## وزیر فرهنگ بریتانیا از مسابقه تیم‌های کرکت انگلستان و افغانستان حمایت کرد



بربنیاد گزارش‌ها، وزارت فرهنگ بریتانیا از مسابقه تیم‌های کرکت افغانستان و انگلستان اعلام حمایت کرده است. به گفته کمیته ورزش پارلمان بریتانیا،ناندی در نامه‌ای به این کمیته گفته که تحریم کردن بازی کرکت تیم ملی انگلستان با تیم ملی افغانستان کارساز نبوده و این بازی باید انجام شود. این عضو کابینه دولت بریتانیا لغو بازی کرکت میان تیم‌های افغانستان و انگلستان را مجازات ورزشکاران خوانده است. این نامه در حالی منتشر شده که اخیراً برخی از افراد مغرض خواستار لغو بازی کرکت میان تیم‌های افغانستان و انگلستان شده‌اند.